تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید آکاخیل باباصاحب

دوهمه حصه

ناشر

مدرسہ حذیفۃ الاحناف

## مسئلة رفع اليدين :

## التحقيق في رفع اليدين :

أعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ﴾

نن زيرِ بحث مسئله هغه مسئله د رفع اليدين او د ترک رفع اليدين ده قبل الركوع بعد الركوع او بعد الركعتين .

زمونږ د كورس په دغه متعددو ايامو كښې مونږ بار بار ددې اظهار وكړو چې مونږه د اهل حديثو ددې زمانې غير مقلدينو ، اشاعتيانو ، عثمانيانو ، پرويزيانو ،مودوديانو وغيره جماعاتو سره عقيدوي فرقونه لرو مسئله د رفع اليدين او د آمين بالجهر ، قرائت خلف الامام ، وضع اليدين تحت السرة فوق السرة على الصدر دا بنيادي مسائل نه دي دا هغه مسائل دي چې اهلِ حديث په دې مسائلو كښې خپله گندگي پټوي او هغه خپله مرداره عقيده چې د خوارجو معتزله وو يا د قدريه وو لري د خلكو نه پټول غواړي په ضمن د رفع اليدين او د آمين بالجهر وغيره مسائلو كښې .

زمونږ كوم حنفي علماء چې دې مسائلو ته زور وركوي داد هغوي غلط فهمي او كم فهمي ده نو زور وركول دې مسايلو ته نه دي په كار وهابيان دې مسائلو ته انتهائي زيات زور وركوي خو د هغوي دې كښې گټه ده او هغه گټه داده چې په دې باندې د هغوي هغه عظيمه گندگي پټيږي او كله چې هغوي دغه مسائل ډير شور سره پرچاره وي كه احناف هم دې مسائلو ته زور وركړي نو عوام الناس به دې فهم ته ورسيږي چې گنې بين الاحناف او بين غير مقلدين تنازع فقط په رفع اليدين باندې ده يا په آمين بالجهر باندې ده يا په قرائت خلف الامام باندې ده دا څومره غلطه خبره ده .

زمونږ له دوي سره نزاع په دې مسائلو نه ده زمونږ له دوي سره نزاع بنيادي په عقيده باندې ده چې مونږ اهلسنت والجماعت يو او دوي د اهل زيغ نه دي .

نو تاسو ته هم زما دا مشوره ده د وروري چې دغه مسائلو ته پرچار او زور مه ورکوي هر کله چې ستاسو دشمن کې غته نیمگړتیاوې او غټ عیب وي او د هغه غټ عیب په ځای باندې تاسو یو وړوکي عیب او سوراخ ته اشارې کوي چې تا کې دا عیب دي دا خو ستا ډیره کمزوري او کم فهمي ده په کار داده چې ته اهل حدیث را تیننگ کړي په مسئله د توسل باندې ، تبرک باندې ، کرامت باندې ، ایصال ثواب باندې ، تقلید باندې وغیره کوم مسائل چې مخکې ما زیرِ بحث وګرځول .

په دې مسائلو اهلِ حدیث را تیننگ کړي چې ستا او د هغه په مینځ کې د اهل السنت او د اهل زیغ فرق واضح شي عوامو ته هم معلومه شي او هغه داسې مسائل دي چې دوي سره هغې کې سواد لا تُسلم په ډیري د کیناستو نه هیڅ شاهد او دلیل نشته دي .

نو دې مسائلو ته به شورش او زور نه ورکوي دا اصلاً اختلافات زمونږ او د غیر مقلدینو نه دي بلکې دا اختلافات بین الاحناف و بین الشوافع دي بین الموالک بین الحنابله دي څلور مذاهبِ حقه هغه دوه ډلې شوې دي امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په قول مشهور او امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ذهاب کړې دي ترک د رفع الیدین لره چې د رفع الیدین کولو نه ، نه کول بهتر دي که چا دلته قول د کراهیت کړې دي حمل دې په کراهیت تحریم نه بلکه په تنزیهي کراهت چې د هغې نه تعبیر په خلاف اولی سره کیږي .

او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ، امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او قول غیرِ معروف د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ هغه په رفع الیدین او په استحباب د هغې باندې دي په دوي کې چا هم دې ته سنت مؤکده لازمه مستمره نه دي ویلې بلکې دا یې ویلې دي چې د ترک رفع الیدین نه رفع الیدین اولی دي او معروف قول د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې اتیان په رفع الیدین خلاف اولی او ترک رفع الیدین اولی دي .

نو دا مسئله ما چونکې وهابیانو ډیر شورش ورکړې دي کاش دوي شوافع او حنابله واي چې مونږ دوي سره ګرځ په ګز لویشت په لویشت باندې معلومه کړې وې چې دې کې ترجیح کوم مذهب لره ده احد الجانب آخر لره په دې کې ګمراه نه شي ویلې .

که کوم حنفي دا وایي چې کوونکې د رفع الیدین ګمراه دي هغه به څه وایي په حق د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ، او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ، د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ ، امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ ، امام

ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ ، امام نسائي رَحِمَهُ اللَّهُ ، صحيح ابن حبان ، ابن خزيمه ، امام حاكم جمله محدثين دا ټول د رفع اليدين قائل دي او محدثين ټول متفق دي په رفع اليدين باندې .

غير له طحاوي او بعضې نورو محدثينو نه نو احد الجانب آخر له ره دې کې ګمراه نه شي ويلې احد الجانب آخر له ره دې کې مفسد للصلاة نه شي ويلې چې ګڼې رفع اليدين مفسد للصلاة دي دا نه شي ويلې فقط په دې کې نزاع بيننا وبين الشوافع والحنابلة په ترجيح کې ده چې مذهب د امام مالک معروف او د امامنا دا راجح دي او که مذهب د شوافعو او حنابله وو راجح دي په رجحان کې خبره ده .

په مسئله د رفع اليدين کې وهابيانو ډير زيات له افتراء نه کار اخيستې دي کله وايي داد ۷۰ صحابه کرامو رايه ده کله وايي داد ټولو بدري صحابه کرامو رايه ده کله وايي په دې کې ۴۰ مرفوع احاديث راغلې دي ، کله وايي دا په تواتر ثابت ده دا ټول محضِ افتراءات او دروغ دي چې اوسه پورې په اسلافو کې د محدثينو نه په دې چا هم قول نه دې کړي چې رفع اليدين په تواتر ثابت دي .

هغه آحاديث مرفوعه چې دوي ترې اخذ کوي څلور (۴) دي چې يو د هغې نه حديث معروف د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دي چې روايت يې بخاري ، مسلم او ټولو کتبو د حديثو کړې دي ، دويم د هغې نه هغه حديث د ابي حميد الساعدي دي چې روايت د هغې ابي داود او نورو سننو کړې دي ، دريم د هغې نه روايت د مالک ابن الحويرث دي ، څلورم د هغې نه روايت د وائل ابن حجر دي دا څلور احاديث چې دي دا احاديث مرفوعه دي چې دوي يې پيش کوي .

دې نه سوا د چند صحابه کرامو لکه ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وغيره څه روايات يې موقوفه پيش کوي خو هغه وهابيانو ته شرم په کار دي چې پيش کوي يې ځکه چې د وهابيانو مذهب دادی چې :

لاحجة في الموقوفات .

د صحابي قول دليل نه دي نو بيا يې ولې پيش کوي د بل د پاره د مرفوع حديث نه چې اخوا کله هم وهابي موقوف پيش کولو بې چون چرا هغه د ده د پاره دليل نه دي .

نو که دې تا ته وايي چې زه دا الزاماً پیش کوم نو ورته وایه چې الزام سبق لزوم غواړي یا سبق التزام غواړي ته چې په ما باندې الزام کوي تا په ځان لازم کړې دي ته خپله دا حجت مني د صحابه وو اقوال خو ستا په نزد حجت نه دي چې ده سره یې پیش نه کړي او نه اقوال د محدثینو ستا په نزد حجت دي چې هغه هم مونږ ته پیش نه کړي دده په نزد صحابي قول حجت نه دي .

نو قال البخاري به څه حجت شي ، قال المسلم به څه حجت شي کل محدثین دې پرې قائل وي خو دا دده دلائل نه دي صحابه دې ټول پرې قائل شي خو دده دلیل نه دي ځکه دده اصل دادی چې صحابه وو قول حجت نه دي .

نو دوي سره مرفوع آحادیث څلور (۴) دي چې کوم پرې دوي ډیر نازیږي او چا ورته صحیح ویلي دي چا ورته متواتر ویلي دي هغه به زه تاسو ته شرحه کړم چې هغه احادیث چې اقوی استدلالاتو ددوي نه دي هغه عند المحدثین په کوم مثابت کې دي او د هغې نه احناف څه جوابات او تاویلات کوي .

## اول حدیث د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما دي :

## التحقیق في حدیث ابن عمر رضي الله عنه :

ددغه روایت نه چې بخاري او مسلم ذکر کړې دي صحیح البخاري جلد ۱ صفحه ۱۸۷ کې باب لګوي :

باب رفع الیدین اذا کبر واذا رکع واذا رفع ، اثبات د رفع الیدین په وخت د تکبیر تحریمه کې په وخت د رکوع کې په وخت د رفعې د رکوع نه دا یې باب دي په دې باب کې حدیث پیش کوي :

حدثنا محمد بن مقاتل قال اخبرنا عبدالله قال : اخبرنا یونس عن الزهري اخبرني سالم بن عبدالله عن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما قال رأیت رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا قام في الصلاة رفع یدیه حتی یکونا حذو منکبیه .

تر دې چې شو برابر د اوږو دده .

وکان . وه نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې دغه عمل یې وکړو .

یفعل ذلك. کوه به یې .

حين يكبر للركوع . کله به یې چې رکوع ته تکبير کوه .

ويفعل ذلك اذا رفع رأسه من الركوع ويقول سمع الله لمن حمده ولا يفعل ذلك في السجود .
سجدې ته کوزیدو او پورته کیدو کې به نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رفع اليدين نه کول .

**جواب :** احناف له دې روایت نه چې امام بخاري او ټولو کتبو د حدیثو را اخیستې دي هغه دادی :

**انه حديث مضطرب متناً** . دا حدیث متنًا مضطرب دي .

د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي احادیث في ذلك الباب په مختلفو طریقو باندې روایت شوې دي هغه به ټول تاسو ته په مستندې حوالې سره ما ذکر کړې دي هغه څوک چې ځان ته اهل حدیث وایي نن زمن کې د هغوي دا رایه ده چې د رکوع نه مخکې وروسته او په وخت د قیام کې د رکعتینو نه دغه دري تکبیرونه دلته رفع اليدين مني تکبیرِ تحریمه خو مسلم دي تکبیرِ تحریمه نه سوا معروف وهابیان چې دي دري ځایه د رفع اليدين قائل دي .
دغه حدیث چې په دغه کې مذکور دي چې تاسو ته ما ذکر کړو نو ددې او له شبهه داده چې :

**فليس فيه رفع اليدين بعد الركعتين .**
ددوي دعوی داده چې د تکبیرِ تحریمه نه به غیر دري ځایه رفع اليدين کیږي حدیث د عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د بخاري دوه ځایه ثابتوي دري ځایه نشته دي نو په کار داده چې په دې حدیث عمل کوي او عاملین بالحدیث یې او دعوی د اتباع د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوي .
نو د بعد الرکعتین د رفع اليدين نه توبه اوباسي ځکه چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې روان یې کنه نو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو روایت مرفوع دا پیش کوي چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رکوع نه مخکې او د رکوع نه وروسته رفع اليدين کړې دي .

په دغه تفصیل کې عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کوم مرفوع د رویت حدیث پیش کوي د حضرت سالم ابن عبد الله د عبد الله په روایت سره دا روایت مرفوع دي اتفاقاً .

نو په دې روایت کې د بعد الرکعتین رفع الیدین نشته دي اضطراب متني ته ګورئ اوس دلته دا نشته.

واپس صحیح البخاري جلد ۱ صفحه ۱۸۸ باب رفع الیدین اذا قام من الرکعتین، باب لګیږي هغه باب کې:

حدثنا عبد الاعلی قال حدثنا عبید الله عن نافع ان ابن عمر رضي الله عنه کان اذا دخل في الصلاة کبر ورفع یدیه واذا رکع رفع یدیه واذا قال سمع الله لمن حمده رفع یدیه واذا قام من الرکعتین رفع یدیه ورفع ذلك ابن عمر الی نبي الله صلی الله علیه وسلم.

ابن عمر رضي الله عنه دا نبي علیه السلام ته مرفوع کوه او منسوبه وه یې یو ددې حدیث له مخکې حدیث سره اضطراب راغې هغه حدیث کې بعد الرکعتین د ابن عمر رضي الله عنه په روایت کې رفع الیدین نشته او دلته په خپل عمل کې بعد الرکعتین راغلې.

دویم دا چې ددې حدیث په رفع او په وقف کې محدثین اختلاف لري چې دا حدیث مرفوع دي که موقوف دي.

دا دویم روایت ګوري اول روایت د سالم ابن عبد الله دي عن ابن عمر او دویم روایت د نافع دي عن ابن عمر، اول روایت د رؤیت دي رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه مرفوع دي اتفاقاً.

دویم روایت دادی چې ما ابن عمر رضي الله عنه ولیدلو هغه به دا عمل کولو یعنې ما ابن عمر رضي الله عنه په خپله ولیدلو چې دا عمل به یې کولو نو دا موقوف عمل د ابن عمر رضي الله عنه پیش شوې دي دلته.

اولا حجت في الموقوفات د وهابیانو په نزد موقوف کې دلیل نشته نو د عبد الله ابن عمر رضي الله عنه په قول کې او په فعل کې دوي ته څنګه دلیل پیدا شو د بعد الرکعتین د پاره یو صحیح حدیث پیش کول په کار دي مرفوع حدیث که څوک وایې چې امام بخاري وایي چې:

رفع ذلك ابن عمر الی نبي الله صلی الله علیه وسلم.

## دویم اعتراض:

الاضطراب في السند: دې حدیث کې اضطراب سندي دي، سنن الکبری للبیهقي جلد ۲ صفحه ۱۳۶ کې لیکي چې ددې په سند کې عبد الاعلی راغلې دي او عبیدالله عن نافع و عبدالاعلی یتفرد برفعه الی النبي صلی الله علیه وسلم، په دې ځای کې د عبید الله چې څومره شاګردان دي هغه دا حدیث موقوف فعل د ابن عمر رضي الله عنه پیش کوي یوائې عبد الاعلی دا مرفوع کړې دي نورو مرفوع کړې نه دي.

شرح الزرقاني علی موطأ الامام مالک رحمه الله جلد ۱ صفحه ۲۲۹ کې لیکي:

**وقال الاصیلي لم یأخذ به مالك لأن نافعاً وقفه على ابن عمر رضي الله عنه.**

امام مالک په دې حدیث اخذ نه دې کړي ولې نه دي کړې وایي ځکه نافع چې کوم دي داد عبدالله ابن عمر رضي الله عنه موقوف عمل پیش کړې دي دې ته یې مرفوع نه دې ویلې.

**لان سالماً ونافعاً لما اختلفا في رفعه ووقفه ترك مالك في المشهور القول باستحباب ذلك.**

هر کله چې د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه شاګرد سالم بن عبد الله په لفظ د رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم سره مرفوع پیش کوي او دلته دغې عبدالله ابن عمر رضي الله عنه بل شاګرد حضرت نافع هغه دا موقوف فعل د عبدالله ابن عمر پیش کوي نو ترك مالك ددغې سندي اضطراب له وجې نه چې دا اوس موقوف شو که مرفوع شو پریښودو امام مالک په مشهور قول کې:

**القول باستحباب ذلك**، دا یې هم ونه ویل چې رفع الیدین مستحب دي مستحب یې هم ورته وویل ځکه سند کې اضطراب دي ولې:

**لان الاصل صیانة الصلاة عن الافعال یعني الخارجیة.**

اصل دادی چې باید مانځه کې خارجي او زیات حرکات ونه شي چې ونه شي هله به کیږي چې په مرفوع صحیح حدیث ثابت شي.

حدیث د عبدالله بن عمر رضي الله عنه په بخاري کې دوه راغلي دي دا پاس روایت یعني اول دلیل ددې دي چې دا مرفوع دي.

لاندې روایت یعني دویم چې کوم دي:

عن نافع ان ابن عمر كان اذا دخل .

ابن عمر دا كار كړې دي هغه موقوف دي .

اوس امام ابوداؤد همدا حديث ذكر كوي اختلاف راغي امام بخاري صرف د عبد الاعلى قول ته كتلي دي چې عبدالاعلى د عبيدالله نه عن نافع ان ابن عمر دا حديث بيا مرفوع كړې دي خو د عبيدالله باقي شاګردان يې موقوف كوي .

اوس امام ابوداؤد څه وايي ابوداؤد جلد ۱ صفحه ۲۷۰ کې همدا حديث ذكر كوي:

حدثنا نصر بن علي اخبرنا عبدالاعلى حدثنا عبيدالله عن نافع عن ابن عمر انه كان اذا دخل في الصلاة كبر ورفع يديه واذا ركع واذا قال سمع الله لمن حمده واذا قام من الركعتين رفع يديه ويرفع ذلك الى رسول الله ﷺ قال ابوداؤد الصحيح قول ابن عمر وليس بمرفوع.

امام ابوداؤد وايي صحيح داده چې اختلاف خو شوې دي په شاګردانو د عبيدالله کې چې بعضو دا مرفوع کړې بعضو موقوف کړې دي خو صحيح دادی چې دا قول د عبدالله بن عمر رضي الله عنه دي وليس بمرفوع ، دا حديث مرفوع نه دي چې مرفوع نه دي نو وهابيان يې ځنګه پيش كوي موقوف خو ددوي په نزد حجت نه دي اصل ددوي دادی چې : لا حجة في الموقوفات ، مرفوع حديث دې ددې باره کې پيدا کړي اوس وايي .

قال ابوداؤد ..... ورواه الثقفي عن عبيدالله اوقفه على ابن عمر .

ثقفي د عبيدالله بل شاګرد ذي هغه دا حديث د عبدالله بن عمر موقوف پيش کړې دي .

قال ابوداؤد ورواه الليث بن سعد ومالك وايوب وابن جريج موقوفاً .

اوس د عبيدالله څو مره شاګردان شول دا خو يو درس حديث وي لکه نن صبا يو شيخ الحديث درس حديث کوي او په سلګونو شاګردان ناست وي ورته يو شاګرد همدغه کال باندې شاګرد دي هغه له دغه شيخ الحديث نه حديث نقلوي رسوي يې سند مرفوع ترې نه جوړوي او دا نور باقي ټول لګيا دي چې نه هغه مونږ ته موقوف بيان کړې دي .

اوس به قول د عبد الاعلى ته ترجيح ورکوي که قول د ليث ابن سعد او مالک ايوب ابن جريج ثقفي ته اوس وايي :

قال ابو داؤد ورواه الليث بن سعد و مالك وايوب وابن جريج موقوفاً.
دا ټول دا حديث پيش کوي.
واسنده حماد بن سلمة وحده عن ايوب ولم يذكر ايوب ومالك الرفع اذا قام من السجدتين يعني من الركعتين.

د هغه په سند کې بالکل دغه الفاظ نشته: اذا قام من الركعتين.
خلاصه داده چې اول سند ددوي مرفوع دي خو ددوي په دعوى دال نه دي ولې دعوى عامه ده دليل خاص دي دعوى د دري ځايه د رفع اليدين قول دي په دليل کې دوه ځايه رفع اليدين ثابتيږي قبل الركوع بعد الركوع بعد الركعتين چيلنج ورکړي وهابيانو ته چې بخاري کې وښايه مونږ ته که د بعد الركعتين لپاره دويم رکعت پيش کوي نو هغې کې ترجيح دې لره ده چې هغه فقط عبد الاعلى رفع د هغې کړې ده باقي مالک ليث بن سعد ايوب ابن جريج ثقفي دا ټول دغه روايت موقوف پيش کوي او امام ابوداؤد ترجيح هم دې ته ورکوي چې:
قال ابوداؤد الصحيح قول ابن عمر وليس بمرفوع.
او مرفوع چې نه شي د وهابيانو په نزد حجت نه دي لا حجة في الموقوفات دا ددوي اصل دي.
دا رنګې عمدة القاري جلد ۹ صفحه ۱۵:
ورواه أبو داؤد في سننه في الصلاة عن نصر بن علي عنه أتم من الأول وعن القعنبي عن مالك عن نافع نحوه ولم يرفعه. مرفوع کړې نه دي.
وقال ابوداؤد الصحيح قول ابن عمر وليس بمرفوع ورواه القعنبي يعني عبد الوهاب عن عبيد الله وأوقفه وكذا رواه الليث عن سعد وابن جريج عن نافع موقوفاً وحكى الدار قطني في العلل الاختلاف في رفعه ووقفه.
خلاصه داده چې دې کې لوي اختلاف دي او يو اځې دوي نه بلکې د وهابيانو سرکرده وو هم دا تسليمه کړې ده چې دويم روايت کې ترجيح وقف ته ده.

الباني ناصر الدين ضعيف سنن ابي داؤد صفحه ۷۲ باندې ترجيح ورکوي وقف ددې حديث لره او تائيد د امام ابي داؤد کوي چې امام ابي داؤد قول په دې ځای کې راجح دي له امام بخاري نه چې هغه دا مرفوع ګڼلي له وجهې د سند د عبد الاعلى نه او باقي متعددو رواتو ته يې نه دي کتلې چې دا يې موقوف کړې دي.

دارنګې امام ولي الدين العراقي په طرح التدريب صفحه ۲۶۲ کې د امام ابي داؤد قول نقل کړې دي چې صحيح داده چې دا موقوف دي مرفوع نه دي.

دارنګې نيل الاوطار جلد ۲ صفحه ۲۰۴ قاضي شوکاني چې دا هم د اهل حديثو نه دي هغه هم ترجيح قول د امام ابوداؤد لره ورکړې ده چې حديث د ابن عمر ثاني چې دي دا موقوف دي مرفوع نه دي.

ضعفاء الکبير جلد ۲ صفحه ۶۸ باندې امام عقيلي وقف ددې حديث ته بهتري او ترجيح ورکړې ده.

دارنګې موطأ امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ صفحه ۸۹ باندې امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ دغه حديث د امام مالک نه په خپل سند سره موقوف پيش کړې دي.

دارنګې موطأ امام مالک جلد ۱ صفحه ۶۱، امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ دغه حديث په سند د نافع سره موقوف پيش کړې دي.

دا حديث اول مرفوع دي د سالم بن عبد الله عن عبد الله بن عمر په هغې کې د بعد الرکعتين رفع نشته.

حديث ثاني چې امام بخاري ذکر کړې دي دغلته د عمده محققينو محدثينو رايه د وقف ده د رفعې نه ده داد ابن عمر خپل عمل دي هغه حجت دوي ته نه شي جوړيدلې خو بعد الرکعتين رفعې باندې دې اهل حديث صحيح حديث پيدا کړي او مفصل حديث چې دغه تول په کې ذکر شوې وي.

اوس مونږ وايو چې د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په رفع اليدين کې ۷ طريقې مروي دي او اکثر سندونه صحيح دي هغې کې داسې روايات شته دي خصم وهابيان يې نه مني خو د ابن عمر نه مروي دي په صحيح سند باندې.

هغه ځای کې چې د ابن عمر رضي الله عنه د حديث نه اهل حديث چې کوم جواب لري همغه جواب زمونږ د بخاري نه دي بيا.

المعجم الاوسط جلد ۱ صفحه ۹ :

حدثنا احمد بن عبدالوهاب قال حدثنا ابي قال حدثنا الجراح بن مليح عن ارطاة بن المنذر عن نافع عن ابن عمر أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يرفع يديه عند التكبير للركوع وعند التكبير حين يهوي ساجداً.

کله به چې سجدې ته کوزيدو نو رفع اليدين به يې کول.

ګوره د بخاري روايت په دې دال شو چې رکوع ته کوزيږي او رکوع نه پورته کيږي رفع اليدين دي او دا روايت د معجم الاوسط چې کوم دي په دې دال دي چې کله دې سجدې ته کوزيږي نو هغه وخت کې رفع اليدين کړې دي.

دوه ځايه په اول روايت کې د ابن عمر مرفوع روايت کې ثابت شو بعد الرکعتين.

په موقوف روايت د ابن عمر کې ثابت شو کله چې سجدې ته کوزيږي روايت د نافع د ابن عمر نه د معجم الاوسط په هغې کې ثابت شو.

مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۷۱:

حدثنا ابو اسامة عن عبيدالله عن نافع عن ابن عمر انه کان يرفع يديه اذا رفع رأسه من السجدة الاولى.

د اولې سجدې نه د رفعې په وخت کې به ابن عمر رضي الله عنه رفع اليدين کول.

ولې اوس وهابيان نه کوي چې د ابن عمر قول نه دين او مذهب جوړ شي او نور هر څه پرې رد شي او بيا دده په مقابله کې د ابن مسعود رضي الله عنه او د حضرت علي رضي الله عنه او د عمر فاروق رضي الله عنه غوندې اشخاصو قول ته و نه کتلې شي نو ده خو :

اذا رفع رأسه من السجدة الاولى.

دا سند صحيح دي هيڅ قسم جرحه په دې باندې نشته د اولې سجدې نه د رفعې په وخت کې رفع اليدين ثابت شول.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۷۱ :

حدثنا ابن عيينة عن الزهري عن سالم عن ابيه قال رأيت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا يرفع يديه بين السجدتين .

اوس دا تعارض دي او که نه دي هغلته ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله د سجدي اولی نه رفع کې رفع اليدين کوي او هلته وايي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ بين سجديتن رفع اليدين نه دي کړي .

دا رنګې بيان الوهم والايهام في كتاب الاحكام جلد ۵ صفحه ۶۱۳ :

وقال الطحاوي حدثنا نصر بن علي حدثنا عبد الاعلى حدثنا عبيد الله عن نافع عن ابن عمر انه كان يرفع يديه في كل خفض ورفع .

همغه د امام بخاري سند دي امام طحاوي خپل شيخ پيش کوي عبد الاعلى ته يې رسوي ، هر کوزيدو او جيګيدو کې به يې رفع اليدين کول رکوع ته کوزيدل يې يو پورته کيدل يې دوه سجدې ته تلل يې دري بيا پورته کيدل څلور بيا کوزيدل پنځه بيا پورته کيدل شپږ .

دا حديث دا ثابتوي چې شپږ ځايه عبد الله ابن عمر رفع اليدين کړي دي .

وركوع وسجود وقيام وقعود بين السجدتين ويذكر ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يفعل ذلك .

اضطراب سندي نور څه ته ويل کيږي وهابيان دې نه څه جواب کوي وايي نه دا خو بعضې اوقاتو کې يو راوي مجمل روايت پيش کړې وي بيا يې مفصل پيش کړې دې دې ته اضطراب نه وايي که اضطراب نه وايي بيا په دې حديث عامل شه سند کې جرحه نشته د طحاوي په سند دې څوک جرحه پيش کړي د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دغه حديث چې په كل خفض ورفع کې ځکه دا سند بعينه سند د امام بخاري دي رجال تول هماغه رجال دي نو بيا عمل پرې ولې نه کوي .

عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو دا مرفوع کړې دي الى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يفعل ذلك کنه که د اضطراب له وجې نه چې اضطراب متني راغلي دي چې حديث متروک شوې له جانبينو دا اضطراب خپله يو ضعف دي يو حديث به د سند په لحاظ ضعيف وي دا حديث د سند په

لحاظ ضعیف نه دي قوي دي دا کل سند و نه قوي دي ولې د متن د اضطراب په لحاظ باندې ضعیف دي اوس دې کې کوم باندې عمل کوي.

دا خو د وهابیانو رایه هم نه ده چې رکوع ته کوزیږه بیا پورته کیږه بیا سجدې ته ما بین سجدتین داد هیڅ هم رایه نه ده.

نو خلاصه دا چې د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه نه د بخاري په اول حدیث کې دوه ځایه رفع الیدین په ثاني حدیث کې دري ځایه رفع الیدین د معجم الاوسط کې چې سجدې ته ځي نو څلور ځایه رفع الیدین د ابن ابي شیبة په روایت کې د اولې سجدې نه پورته کیدو کې شوي دي پنځه ځایه رفع الیدین.

او آخري روایت د طحاوي په دې دال دي چې اوه (۷) ځایه رفع الیدین شوې دي او ټول مرفوع روایت پیش کوي کوم یو موقوف دي نور اکثر مرفوع روایت پیش کوي.

نو ستاسو ذهن په دې خلاصوم چې داسې نه وه چې امام مالک رحمه الله رحمه الله ته دا حدیث نه وه رسیدلې یا امام ابو حنیفه رحمه الله د حدیثو نه نه وه خبر، خبر وه تاسو نه ګوري د امام اوزاعي مناظره د امام ابو حنیفه رحمه الله سره چې حدیث د عبدالله بن عمر رضي الله عنه یې پیش کړو هغه ورته مقابله کې د خپل سند حدیث د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه پیش کړو نو دلته خو دا هم څوک نه شي ویلې چې امام ابو حنیفه رحمه الله ته حدیث نه وه رسیدلې اکثر خلک دا خبره کوي چې ده ته به حدیث نه وي رسیدلې ځکه به یې د رفع الیدین نه انکار کوي.

د امام اوزاعي رحمه الله په مناظره کې خو ورته حدیث پیش شو کنه نو بیا یې ترجیح سند د فقه الرواۃ ته ورنه کړه چې زما د دې سند رواۃ چې کوم دي ټول فقهاء دي او ته چې کوم پیش کوي محدثین پیش کوي د محدث قول کله د فقیه قول ته رسیدې شي بیا په داسې جزي فرعي مسائلو کې.

نو اوله خبره داده چې دا حدیث مضطرب دي متناً او ددې صحیح روایاتو باندې د ابن عمر رضي الله عنه نه متعددو ځایونو کې رفع الیدین ثابت دي وهابیان یې خپله هم نه کوي هغه روایت نه چې وهابیان څه جواب د ابن عمر رضي الله عنه نه کوي همغه جواب زمونږ هم دي دوي څه وایي تا په ابتداء کې اوه (۷) ځایه رفع الید کیدل بیا ۶ شول بیا منسوخ شو ۵ ته راغلل بیا ۴ ته راغلل بیا آخر د بخاري روایت ته راغي چې دا دري ځایه پاتې دي نور ختم شوې دي نو فی

الجمله د نسخې قول خو تاسو هم وکړو کنه که د نسخې قول ونه کړي نو د هر کوزیدو او جیګیدو کې به رفع الیدین کوي بیا نو چې هر کله د في الجمله نسخې قول تاسو هم وکړو او صراحت د نسخې نشته خو له دې وروستي روایاتو د ابن عمر رضي الله عنه مخکني هغه روایت چې کومو کې زیات راغلي منسوخ مو وګڼل.

نو دغه شان ته روایات د هغه خپله د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه نه به مونږ وروسته تاسو ته پیش کړو چې امام مجاهد صحیح سند سره نقل کوي چې هغه رفع الیدین په خپله هم نه دي کړي عمل د راوي چې د قول د راوي مخالف وخیژي دلیل د نسخې د قول د راوي وي.

بهر حال احناف دې کې دوه ډلې دي یو جماعت لکه امام طحاوي ترجیح نسخې ته ورکوي چې دا وه خو اوس منسوخ شوې دي خو اکثر محققین احناف چې کوم دي د نسخې قول هم نه کوي بلکې هغوي وايي چې دا خلاف اولی دي ثابت دي مذهبین پرې قائل دي محدثین دي خو خلاف اولی دي.

دا اضطراب چې مونږ کوم بیان کړو نو دا اضطراب متني وه.

**(۲) الاضطراب في السند** : سند کې اضطراب دي :

هغه مخکې تاسو ته ما بیان کړو په وقف او په رفعې د حدیث کې اضطراب دي چې دا حدیث موقوف دي که مرفوع.

امام بخاري ترجیح سند د عبد الاعلی ته ورکوي او مرفوع کوي یې او امام ابي داؤد نورو متعددو رواتو له وجې نه دا حدیث موقوف ګڼي.

**فلذا ترکه مالك** . په امام ابو حنیفه رحمه الله خو به دا اعتراض خلک وکړي چې حدیثونه خبر نه وه عیاذاً بالله په هغه خو ډیر ډاډه ورځي په امام مالک رحمه الله خو دا هم نه شي ویلې هغه خو په حدیثو کې معروف دي.

چې څومره سندونه دي په امام مالک رحمه الله ورځي امام مالک ابن شهاب الزهري دا چند اشخاص چې کوم دي دا مداروي محدثین وايي چې سند امام مالک رحمه الله ته ورسیده نو مخکې یې مه لټوه چون چرا مه کوه چې سند ضعیف نه وي زه یې لټوم.

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ چې راغې هغې نه بعد سند خپله قوي دي په دې محدثین اتفاق لري اوس امام مالک رَحِمَهُ اللهُ له دومره حفظ الحدیث سره دا حدیث ولې نه قبلوي عمل پرې ولې نه کوي مذهب پرې ولې نه جوړوي.

المدونة الکبری د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ خپل تصنیف دي دا ددې لپاره زه دا حواله ذکر کوم چې کیدې شي تاسو د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ هغه غیرِ معروف قول بعضې شوافعو را اخیستې دا په هر مذهب کې داسې خلک شته دي چې په چا فقه غالبه ده د مذهب تائید او په چا باندې حدیث غالب شوې دي لکه زمونږ دې فقهاو کې تاسو وګوري په چا فقه غالبه ده هغه ډیر زور لګوي چې د خپل امام قول چې په هر قیمت وي هغه ثابت کړي لیکن یو سړي به حنفي وي او په هغه باندې به حدیث غالب شوې یې هغه بیا خروج کوي بعضې اوقاتو کې چې هلته صحیح آحادیث وګوري دلته جواب پیدا نه کړي بیا ورو هغه خبره سسته کړي دغه شان شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ دا کلک حنفي دي او مضبوط حنفي دي.

خو ګوري حدیث پرې غالب دي فقه پرې غالبه نه ده په ده حدیث غالب دي دې چې کوم ځای کې اخوا ته صحیح سند ونه ګوري او څه لاره پیدا نه کړي بیا ورو نورمال چلیږي هلته هغه طرف ته بیا میلان لري یا لکه محمود آلوسي محمود آلوسي باندې تفسیر آحادیث غالب وه په دې وجه باندې دې په ډیرو ځایونو کې صفا الفاظو سره وایي چې زه ړوند مقلد نه یمه دې وخت کې ما د امام صاحب مذهب پریښې دي خروج ترې نه کوي.

د الایمان یزید وینقص په باب کې زادتهم ایماناً دې ځای باندې تاسو وګورئ محمود آلوسي اقرار کوي چې زه دې کې تقلید نه شم کولې ما د امام صاحب مذهب پریښې دي خروج یې ترې کړي نو بعضې داسې دي چې په هغوي حدیث غالب دي هغوي بیا خروج کوي دغه شان په موالکو کې هم شته چې کومو باندې فقه غالبه وي هغوي د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ اصلي قول نقل کړې دي خو داسې هم شته چې هغوي باندې حدیث غالب شوې دي هغوي بیا دې بل اړخ ته رجوع کړې ده.

نو وهابیان خلکو ته دا وایي چې د ا د دري مذهبونو فیصله ده نو دا غلطه ده دا د دوه مذهبونو فیصله ده دوه مذهبه چې امام مالک دي او امام ابو حنیفه رَحِمَهُمَا اللهُ دي دوي د ترک د رفع الیدین قائل دي او هر سړې دې ګریوان کې سر تیټ کړي چې آیا فقه د امام شافعي

رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ فقاهت ددې دواړو د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ مقام ته رسيدي شي د هغوي فقه دوي ته كله رسيدلې شي.

صحيح ده په فن د حديثو كې كه شي په څلورو آئمه وو كې په حفظ الحديث كې شهرت اوله مرتبه كې د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ وه ابن تيميه وايي زه امام احمد پسې ځكه لاړمه چې دې د حديث غټ جامع دي په دې تولو كې دويمه مرتبه كې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دي دريمه مرتبه كې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دي څلورمه مرتبه كې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دي خو كه د فقهي باب ته بيا راغلې نو اوله مرتبه كې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دي دويم امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دي دريم امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دي څلورم امام احمد رَحِمَهُ اللهُ.

نو المدونة الكبرى جلد ۱ صفحه ۱۶۵ كې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي:

**قال مالك لا اعرف رفع اليدين في شيء من تكبير الصلاة لا في خفض ولا في رفع الا في افتتاح الصلاة يرفع يديه شيئاً خفيفاً.**

هغه وايي زه رفع اليدين په تكبيرونو د مانځه كې كوزيدو پورته كيدو كې په يوه كې هم لا اعرف نه پيژنم دې كې ما ته څه معروف حديث نه دي ثابت نو نه به اوچتوي لاسونه مگر په اول تكبير كې او په اول تكبير كې به يې هم شيء خفيف اوچتوي هلته دې هم وايي ډير زيات اوچتوي نه.

شرح الزرقاني على موطأ امام مالک جلد ۱ صفحه ۲۲۹:

**وقال الاصيلي لم يأخذ به مالك لان نافعاً وقفه على ابن عمر.**

روايت د ابن عمر باندې امام مالک اخذ نه دي كړي ځكه نافع دا موقوف د ابن عمر پيش كړي.

المدونة الكبرى جلد ۱ صفحه ۱۶۵ كې د ابن القاسم قول نقلوي:

**وكان رفع اليدين عند مالك ضعيفاً الا في تكبيرة الاحرام.** د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد رفع اليدين ضعيف وه مگر په تكبير احرام كې دا مې دې دپاره پيش كړل چې دوي دا خبره كوي چې د جمهورو مذهب رفع اليدين دي غلطه ده جمهور خو دې ته نه وايي چې ۵ يا ۶ محدثين پرې راغونډ شي جمهور په ۴ مذاهبو كې چې ۳ يو خوا ته راشي دا جمهور دي دغه

يو يې مخالف راشي نو دلته خو دوه مذهب د ترک قائل شول امام مالک رَحِمَهُ اللهُ امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او دوه مذهبو قول وکړو.

له دې وجې نه هغه غير معروف قول چې کوم د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ نقليږي او بعضې مقلدينو د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ پيش کړې دي هغې ته به هيڅ التفات نه شي کولې ځکه که دغې ته التفات واي نو امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ د هر چا نه د آئمه وو په مذاهبو ښه پوهيږي او هغه چې دې ځاى ته راشي نو وايي دا مذهب د امام شافعي او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ دي ولې نه وايي چې مذهب د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ هم دي خو مذهب د امام مالک نه وه هغه ته معلومه وه چې د امام مالک قول معروف دغه دي چې رفع اليدين به نه کيږي.

او بل دا چې المدونة الکبرى د امام مالک خپل تصنيف کې هغه وايي زه په رفع او خفض کې رفع اليدين نه پيژنم نو بيا د هغه يو مقلد را پورته کيږي او د هغه په امام يوه خبره تپي نو دا به بيا بې ځايه وي کنه کيدې شي د فقه مالکي په بعضې کتبو کې چې چا باندې حديث غالب شوې يې د محدثينو غلبه پرې راغلې وي هغه د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مذهب ته دې ته رجحان ورکړې وي وي به داسې عبارت خو هغې ته به اعتبار نه وي.

نو يو متناً اضطراب شو، دويم سنداً اضطراب شو.

**دريم ومع ذلك عمل ابن عمر يخالف روايته.** د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل د دې مخالف دي، مونږ ښايو چې ابن عمر د دې خلاف عمل کړې دي.

**مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۷:**

**حدثنا ابو بکر بن عياش عن حصين عن مجاهد قال ما رأيت ابن عمر يرفع يديه الا في اول ما يفتتح.**

ما نه دي ليدلې ابن عمر چې رفع اليدين کړې وي مګر په اول هغه کې چې ده به شروع کوله.

همدا روايت امام طحاوي را اخيستې دي او امام طحاوي دا دليل د نسخې ګرځولې دي هغه ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې حديث مرفوع مونږ ته پيش کوي د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا خپل عمل ولې خلاف د هغې صادروي وايي دا دليل د دې دي چې دا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د

رفع اليدين نسخه نه وه ثابت شوې قول يې پرې کړې وه چې کله نسخه ورته ثابته شوه نو د هغې عمل نه يې رجوع کړې ده ترک طرف ته يې ذهاب کړې دي .

دا حديث د سند په لحاظ باندې ابوبکر بن عياش په هغه باندې ثقه دي خو روايت د غير شامينو بعضې خلک څه خبره کوي د تائيد لپاره زه دويم روايت پيش کوم :

**الموطأ د امام محمد جلد ۱ صفحه ۱۸۳ :**

**قال محمد اخبرنا محمد بن ابان بن صالح عن عبدالعزيز بن حکيم قال رأيت ابن عمر يرفع يديه حذاء أذنيه في أول تکبيرة افتتاح الصلاة ولم يرفعهما فيما سوی ذلك .**

ما ابن عمر رضي الله عنه وليده چې تکبير افتتاح نه غير رفع اليدين نه دي کړي نو امام مجاهد په دې کې متفرد نه دي بلکې صالح بن عبد العزيز بن حکيم ورسره متابع دي په دې کې او هغه معي دي ورسره په دې قول کې چې رفع اليدين يې نه دي کړي .

**عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ۹ صفحه ۸ کې دا روايت پيش کوي :**

**واخرجه ايضاً ابن ابي شيبة في مصنفه حدثنا ابوبکر بن عياش عن حصين عن مجاهد قال ما رأيت ابن عمر يرفع يديه الا في اول ما يفتتح .**

خصم واي جواب کې وايي چې :

**هذا حديث منکر .**

يعني داد معروف مقابله کې راغلې دي ځکه :

**لان طاؤساً قد ذکر انه رأی ابن عمر يفعل ما يوافق ما روی عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم من ذلك .**

طاوس وايي چې ما ابن عمر وليدلو چې رفع اليدين يې وکړل هغه شان چې کوم مرفوع روايت کې بيان کړې دي .

**قلنا :** مونږ وايو .

**يجوز ان يکون ابن عمر فعل ما رواه طاووس يفعله .**

هغه وخت کې دا کار کړې وه .

قبل ان تقوم الحجة عنده بنسخة .

چې د نسخې دليل ورسره نه وه .

ثم قامت الحجة عنده بنسخه فتركه وفعل ما ذكره عنه مجاهد .

دا عمل ييا وروسته ترې صادر دي د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د رفع اليدين رد هم ثابتيږي او د دې قول چې په آخره کې ده نه دې کړي او د دې مخالفت يې هم کړې دي .

ميزان الاعتدال جلد ۱ صفحه ۳۱۵ خپل سند سره د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت پيش کوي :

قال رأيتكم ورفع ايديكم في الصلاة والله انها لبدعة ما رأيت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فعل هذا قط .

تاسو ته گورم چې لاسونه اوچتوي په مانځه کې قسم بالله دا بدعت را ته ښکاري ما نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دي ليدلې چې دا كاريې كړې وي .

اوس دا روايت د هغې څومره معارض دي .

نصب الرأية جلد ۱ صفحه ۴۰۴ :

اخرجه البيهقي في الخلافيات عن عبد الله بن عون الخراز قال حدثنا مالك عن الزهري عن سالم عن ابن عمر أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يرفع يديه اذا افتتح الصلاة ثم لا يعود .

بيا به يې دا عمل نه کوه .

اوس د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رواياتو سره څه کوي هغه چې کومو کې ثبوت راغلې هغلته څومره تعارض دي او دلته په مقابله کې ترې نه مخالف رواياتو ته وګوره چې هغه وايي نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا نه دي کړي .

والشعبي لقي ۵۰۰ من الصحابة ومع ذلك لا يرفع يديه .

امام شعبي رَحِمَهُ اللهُ ۵۰۰ صحابه وو سره ملاقات کړې دي او رفع اليدين به يې نه کول .

مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶-۶۳۶ :

حدثنا ابن مبارك عن اشعث عن الشعبي انه كان يرفع يديه في اول التكبيرة ثم لا يرفعهما .

او دده تاريخ کې دا معروفه ده چې ده د ۵۰۰ صحابه وو ملاقات کړې دي .

تنبیه : یوه آګاهي ده :

دا شان بې ځایه اعتراضات دوي یې کوي نو مونږ یې هم په دې خبرو راوستلو ګنې زمونږ حنفیان تطبیق لټوي هغه تطبیق دغه دي چې د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روایت کې انتهائي تعارض دي او دې کې سړي نه شي کولې چې یو را واخلي معمول به و ګرځوي او بل دده دا عمل په مقابل د عمل د عبدالله مسعود رضي الله عنه کې به څه مرتبت ولري.

دده روایت مقابله روایت د عبدالله ابن عمر نه شي کولې ځکه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه عمر د نبي علیه السلام د وفات په وخت کې ۳۵ کاله دي او دده ۱۸ کاله دي دې د ځوانانو نه دي او یا د هلکانو نه دي او هغه د پخو عمر والا نه دي نبي علیه السلام به فرمایل ما ته خاوندان د عقل او مشران په صف کې مخکې اودریږي نو عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مخکې دریدونکي انسان دي او عبدالله بن عمر رضي الله عنه وروسته دریدونکي انسان دي.

دده روایت مقابله د روایت د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه شي کولې کوم چې له استدلالاتو د احنافو نه دي خو چونکې دوي په مونږ باندې بعضې داسې اعتراضونه کوي لکه د آمین بالجهر مسئله کې څه احادیث او روایات لرو نو په هغې کې شعیب الارنووط او الباني لګیدلي دي نوره څه لاره ورسره نه ده پیدا شوې.

نو جواب یې کړې وای دا روایت د حسن دي او عنعن یې کړې ده او حسن بصري رحمه الله مدلس دي اوس ددوي په حسن بصري هم اعتراض دي بنه څه کوي ورسره نو دغه شان اعتراض په دوي هم کیږي د مصنف ابن ابي شیبة جلد ۱ صفحه ۲۷۱ کې چې کوم حدیث مخکې تیر شو :

لا یرفع یدیه بین السجدتین.

په هغې کې زهري د سالم نه په عن سره روایت کړې دي نو هغه دا چې :

روایة البخاري من الزهري وهو مدلس وقد عنعن.

زهري په خپله هم مدلس دي عنعن یې کړې ده نو دوي چې زمونږ د حسن بصري رحمه الله په اقوالو اعتراض کوي مونږ به ددوي د زُهري په اقوالو اعتراض وکړو خو دا اعتراض بې ځایه دي.

دا دوي اهل حديثو کې د رفع اليدين يو مخالف پيدا شوې دي هغه په خپله کړې دي د هغوي په کتاب کې مې وليده واي چې دوي د ابن عمر رضي الله عنه روايت ته صحيح وايي دا کله صحيح کيدې شي ددې په سند کې زُهري راغلي او هغه مدلس دي عنعن يې کړې ده.

## دويم روايت :

دويم روايت ددوي هغه روايت د مالک بن الحويرث رضي الله عنه دي صحيح مسلم را اخيستې جلد ۲ صفحه ۷ کې :

حدثنا يحيٰ بن يحيى اخبرنا خالد بن عبدالله عن خالد عن أبي قلابة انه رأى مالك بن الحويرث اذا صلى كبر ثم رفع يديه واذا اراد ان يركع رفع يديه واذا رفع رأسه من الركوع رفع يديه

وحدث . بيان يې دا کوه .

ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يفعل هكذا .

## ايرادات :

(۱) ليس فيه رفع اليدين بعد الركعتين .

دعوى دې عامه ده دليل دې خاص دي دعوى دې درې ځايه رفع اليدين دي دليل دې دوه ځايه ثابتوي .

(۲) فيه اضطراب متناً . دې کې اضطراب دي متناً .

سنن النسائي جلد ۲ صفحه ۲۰۵ :

اخبرنا محمد بن المثنى قال حدثنا بن ابي عدي عن شعبة عن قتادة عن نصر بن عاصم عن مالك بن الحويرث انه رأى النبي صلى الله عليه وسلم رفع يديه في صلاته واذا ركع واذا رفع رأسه من الركوع واذا سجد واذا رفع رأسه من السجود حتى يحاذي بهما فروع اذنيه .

پاس حديث د مسلم کې دوه ځايه رفع اليدين رکوع ته پورته کيدو او رکوع ته د کوزيدو په وخت کې په روايت د نسائي کې څلور ځايه رفع اليدين د مالک بن حويرث په

روایت کې دي کله چې سجدې ته کوزیږي او کله چې د سجدې نه پورته کیږي رفع الیدین یې کړې دي.

قال الشیخ الالباني صحیح. دا حدیث هم صحیح دي.

دا اعتراض نه شي کولی چې روایت د مسلم صحیح دي او دا ګڼې ضعیف دي زه یې نه منم نه د سند په لحاظ دا هم صحیح دي اوس چې څه جواب ستا له دغه حدیث نه وي هماغه جواب زمونږ ستا د روایت د مالک بن حویرث د مسلم د روایت نه دي خو قول به کوي په دې دوه ځایه کې د نسخې کنه چې د نسخې قول ونه کړي بلهلار درسره نشته، دا روایت شرح مشکل الآثار جلد ۱۵ صفحه ۵۷ کې هم ذکر کړې دي.

(۳) التحقیق في روایة وائل بن حجر رضي الله عنه:

سنن النسائي جلد ۲ صفحه ۱۲۶:

اخبرنا سوید بن نصر قال انبأنا عبدالله بن المبارك عن زائدة قال حدثنا عاصم بن کلیب قال حدثني ابي ان وائل بن حجر اخبره قال قلت لأنظرن الی صلاة رسول الله صلی الله علیه وسلم کیف یصلي فنظرت الیه فقام فکبر ورفع یدیه حتی حاذتا باذنیه ثم وضع یده الیمنی علی کفه الیسری.

بیا یې کیخوده خي لاس په کف یسری باندې او په مړوند باندې او په ساعد باندې.

فلما اراد ان یرکع. هر کله یې چې اراده وکړه چې رکوع وکړي.

رفع یدیه مثلها. بیا یې لاسونه اوچت کړل.

قال ووضع یدیه علی رکبتیه ثم لما رفع رأسه رفع یدیه مثلها ثم سجد فجعل کفیه بحذاء اذنیه ثم قعد وافترش رجله الیسری.

دا هغه دریم استدلال ددوی دي معروف حدیث دي چې دوي یې استدلال کې پیش کوي.

(۱) لیس فیه رفع الیدین بعد الرکعتین. دلیل دي خاص دی دعوی دې عامه ده دعوی دې دري ځایه رفع الیدین دی په حدیث کې بعد الرکعتین رفع الیدین نشته.

(۲) فيه و رفع يديه حتى حاذتا باذنيه . لاسونه يې اوچت كړه تر دې چې برابر شو نرمې د غوږونو سره .

وهابي كاكا ته د دې قائل يې او كه نه څنګه نيم حديث منې او نيم نه منې د وائل ابن حجر روايت مونږ ته پيش كوي او بيا خپله د دې عمل موافق نه يې لاس اوچت كړه غوږونو ته كنه ته خو يې اوږو پورې اوچتوي كنه او كه وايې نه هغه حديث دې نه قوي دي خو دا ضعيف شو كنه نو بيا ترې دغه تكړه څنګه قوي پاتې شوه د رفع اليدين باره كې څنګه قوي پاتې شو .

شحمتي الأذنين محاذات كې رفع د ايديو هلته ضعيف شو نو په دې جمله كې بيا څنګه قوي پاتې شو قوت او ضعف خو په اعتبار د سند سره وي كنه سند خو يو دې نو په دې كې رفع د يدينو حتى حاذتا باذنيه هل انتم قائلون بذلك .

آيا دا ستاسو قول دې چې نرميو د غوږونو ته به لاس اوچت شي .

(۳) فيه وضع يده اليمنى على كفه اليسرى والرسغ . په دې كې دا راغلل چې ښي لاس به د چپ لاس په كف باندې كيږدي هل انتم قائلون بذلك .

دا حديث خو په تا رد كوي څو مره ځايونو كې رد درباندې وكړو .

(۴) فيه ثم قعد وافترش رجله اليسرى . كيناسته او چپه خپه يې فرش كړه نصب د يمنى يې وكړو هل انتم قائلون بذلك .

دوي خو د ښځو په شان د كوناتې د ايستلو قائل دي چې يو طرف ته به خپې اوباسي او كيني به او دلته حديث د دې دال دې چې نه افتراش د يسرى راغلې نصب د يمنى راغلې په دې شكل ناسته ده نو دا حديث خو څو ځايه كې مذهب حنفي ته تائيد وركوي .

حاذتا باذنيه . دا حنفي تائيد دي .

وضع د يد يمنى په كيف يسرى باندې داد حنفي مذهب تائيد دي .

او ثم قعد وافترش رجله اليسرى . داد حنفي مذهب تائيد دي .

اصلي جواب له دغې تكړې نه چې دې كې رفع اليدين راغلل او تاسې يې نه كوي نو مونږ وايو :

فيه اضطراب . په دې کې اضطراب شته :

سنن الدار قطني جلد ۲ صفحه ۴۴:

حدثنا احمد بن عبدالله الوكيل حدثنا الحسن بن عرفة حدثنا هشيم عن حصين ح وحدثنا القاضي الحسين بن اسماعيل وعثمان بن محمد بن جعفر قالا حدثنا يوسف بن موسى حدثنا جرير عن حصين بن عبدالرحمن قال دخلنا على ابراهيم فحدثه عمرو بن مرة قال صلينا في مسجد الحضرميين فحدثني علقمة بن وائل عن ابيه انه رأى رسول الله صلى الله عليه وسلم يرفع يديه حين يفتتح الصلاة واذا ركع واذا سجد . کله به چې سجدې ته تلو رفع اليدين به يې کول.

دا ددوي قول نه دی له مخکې حديث سره اضطراب دی .

فقال ابراهيم . ابراهيم نخعي ورته وايي .

ما ارى أباك راى رسول الله صلى الله عليه وسلم . حضرت علقمه ته وايي گمان مې نه دی پلار ستا باندې چې وائل بن حجر دی چې ده به ليدلې وي نبي عليه السلام .

الا ذلك اليوم الواحد . دغه يوه ورځ يې ليدلی دی او عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه .

لم يحفظ ذلك منه ثم قال ابراهيم انما رفع اليدين عند افتتاح الصلاة .

دې مجلس کې ابراهيم النخعي ناست دی هغه دې علقمه ته وايي ستا پلار به نبي اکرم صلى الله عليه وسلم به يو ځل ليدلې وي .

او عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ۵۰ ځل ليدلې دی هغه دا حديث ياد نه کړو د رفع اليدين نې ستا پلار يې پيش کوي نو بيا خلکو ته ابراهيم النخعي وويل چې دا په اول تکبير کې رفع اليدين دي نور نشته دا حديث صحيح دی د سند په لحاظ دا هغه حديث د نسائي سره اضطراب دی هغلته د سجدې په حالت کې رفع اليدين نشته دی او دلته دا ذکر کوي چې :

اذا ركع واذا سجد . کله به چې سجدې ته تللو او دا مذهب د وهابيانو نه دی .

دارنګې شرح مشکل الآثار جلد ۱۵ صفحه ۳۷ :

حدثنا بكار بن قتيبة حدثنا مؤمل بن اسماعيل حدثنا سفيان عن المغيرة قال قلت لابراهيم حديث وائل انه رأى النبي صلى الله عليه وسلم .

ما ورته دا حديث پيش کړو چې دې وايي ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ليدلي .

يرفع يديه اذا افتتح الصلاة واذا ركع واذا رفع رأسه من الركوع فقال ان كان وائل رآه مرة فقد رآه عبدالله خمسين مرة .

که وائل چيرته ليدلې وي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يو ځل عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پنځوس ځل ليدلې دي چې لا يفعل ذلك ، دا يې نه دي کړي .

فاحتملنا هذا عن ابراهيم وان كان لم يذكر من بينه وبين عبدالله فيه . که ته وايي چې دا قول ابراهيم د عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نقلوي نو د دې مينځ کې سند کوم دي .

لما قد ذكرناه في غير هذا الموضع من كتابنا من قوله للاعمش جوابا له عن قوله . داعمش ته ويلې وه .

اذا حدثني فأسند بان قال له اذا قلت لك قال عبدالله فلم اقل ذلك حتى حدثنيه عنه جماعة .

ابراهيم النخعي اعمش ته وايي که ما درته وويل چې قال عبد الله نو دا به هغه وخت کې زه وايمه چې د عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه ما ته ته غټې ډلې را رسولې وي .

واذا قلت حدثني فلان عن عبدالله فهو الذي حدثني .

نو چې هر کله ده دلته دا خبره پيش کړه :

فقد رآه عبدالله خمسين مرة حدثني فلان يې و نه ويل ډارک حواله يې د عبد الله ورکړه نو امام طحاوي دې نه استدلال کوي چې دا دده په نزد باندې د جمعِ غفيرې عن عبدالله دا خبره ثابته ده .

په دې ځای کې دوي دا اعتراض کوي چې ابراهيم النخعي له عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ملاقات خو نه دي شوې دې ځکه وايي چې فقد رآه عبد الله ددې خبرې سند په کار دي .

نو د هغې جواب امام طحاوي کوي چې ده امام اعمش ته ويلې وه چې کله ما تا ته قال

عبدالله وويل ډار ک حواله د عبدالله مې در کړه نو دا به هغه وخت کې وي چې ما به يوې غټې ډلې د هغې نه روايت کړې وي ما ته به يې ويلې وي نو زه د کثرت له وجې نه نو مونه پرېږدمه او قال عبدالله وايمه.

او چې کله حدثني فلان عن عبدالله وايمه نو بيا به هغه خاص سړي يو کس به روايت کړې وي.

عمدة القاري جلد ۹ صفحه ۹ کې وايي که چيرته خصم دليل پيش کړي د وائل ابن حجر چې رأيت رسول الله ﷺ يرفع يديه دا حديث پيش کړي.

جواب يې دادی چې:

انه ضاده ما رواه ابراهيم النخعي عن عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه انه لم يكن رأى النبي ﷺ فعبدالله اقدم صحبة لرسول الله ﷺ.

عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه داد صحبت د نبي عليه السلام کې له متقدمينو نه دي او افهم دي په افعالو د نبي عليه السلام د وائل ابن حجر نه.

وقد كان رسول الله ﷺ يحب ان يليه المهاجرون ليحفظوا عنه وكان عبدالله كثير الولوج والدخول على رسول الله ﷺ ووائل ابن حجر أسلم في المدينة في سنة تسع من الهجرة وبين اسلاميهما اثنتان وعشرون سنة.

۲۲ کاله فرق دي هغه په اول کال د بعثت کې ايمان راوړی دي عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه او وائل ابن حجر په ۹ کال د هجرت ايمان راوړی دي يو کال يې د نبي عليه السلام سره تير کړی دي او عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ورسره ۲۲ کاله تير کړي دي.

ولهذا قال ابراهيم للمغيرة حين قال ان وائل احدث انه رأى رسول الله ﷺ يرفع يديه اذا افتتح الصلاة واذا ركع واذا رفع رأسه من الركوع ان كان وائل رآه مرة يفعل ذلك فقد رآه عبدالله خمسين مرة لا يفعل ذلك فان قلت خبر ابراهيم غير متصل لانه لم يدرك عبدالله لانه مات سنة اثنتين وثلاثين بالمدينة وقيل بالكوفة ومولد ابراهيم سنة خمسين كما

صرح به ابن حبان قلت عادة ابراهيم اذا أرسل حديثا عن عبد الله لم يرسله الا بعد صحته عنده من الرواة عنه وبعد تكاثر الروايات عنه ولا شك ان خبر الجماعة اقوى من خبر الواحد.

دا ده ته په ډيرو رواياتو باندې را رسيدلي ورته دغه وخت کې دې ارسال کوي.

څلورم حديث ددوي روايت د ابي حميد الساعدي رضي الله عنه دي:

دا هغه روايت ذي چې ددوي په هغه دري وارو ځايو رفع اليدين باندې دال دي يعني ددوي په دعوى دال دي روايت د امام بخاري هم پرې دال نه دي هغه دويم روايت پرې دال دي خو راجحه داده چې هغه دويم روايت موقوف دي مرفوع نه دي دليل نه ګرځيږي.

سنن ابي داؤد جلد ۱ صفحه ۲۶۵:

حدثنا احمد بن حنبل حدثنا ابو عاصم الضحاك بن مخلد ح وحدثنا مسدد حدثنا يحيى وهذا حديث احمد قال اخبرنا عبد الحميد يعني ابن جعفر اخبرني محمد بن عمر بن عطاء قال سمعت ابا حميد الساعدي في عشرة من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم منهم ابو قتادة.

لس (۱۰) کسان صحابه کرام ناست دي هغوي کې ابو قتادة رضي الله عنه هم وه.

قال أبو حميد أنا أعلمكم بصلاة رسول الله صلى الله عليه وسلم قالوا فَلِمَ فوالله ما كنت باكثرنا له تبعاً ولا اقدمنا له صحبة قال بلى قالوا فاعرض قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا قام الى الصلاة يرفع يديه حتى يحاذي بهما منكبيه ثم يكبر حتى يقر كل عظم في موضعه معتدلاً ثم يقرأ ثم يكبر فيرفع يديه حتى يحاذي بهما منكبيه ثم يركع.

رکوع نه مخکې ثابت شو.

ويضع راحتيه على ركبتيه ثم يعتدل فلا يصب رأسه ولا يقنع ثم يرفع رأسه فيقول سمع الله لمن حمده ثم يرفع يديه حتى يحاذي بهما منكبيه معتدلاً ثم يقول الله اكبر ثم يهوي الى الأرض فيجافي يديه عن جنبيه ثم يرفع رأسه ويثني رجله اليسرى فيقعد عليها ويفتح أصابع رجليه اذا سجد ويسجد ثم يقول الله اكبر ويرفع رأسه ويثني رجله اليسرى فيقعد عليها حتى يرجع كل عظم الى موضعه ثم يصنع في الاخرى مثل ذلك ثم اذا قام من الركعتين كبر ورفع يديه.

دغه ددوي دعوی باندې دال دي رکعتینو نه به چې پاڅیدو نو رفع الیدین به یې کول.

حق یحاذي بهما منکبیه کما کبر عند افتتاح الصلاة ثم یصنع ذلك في بقیة صلاته حق اذا کانت السجدة التي فیها التسلیم أخّرَ رجله الیسری وقعد متورکا علی شقه الایسر.

دا ددوي په هغه عمل هم دال شو چې یو طرف ته وتل دي نو صحابه ورته وایي:

قالوا صدقت هکذا کان یصلي رسول الله صلی الله علیه وسلم.

دا ددوي په دعوی باندې دال دي.

عمدة القاري شرح صحیح البخاري جلد ۹ صفحه ۸ کې ذکر کوي:

فان احتج الخصم. که خصم دلیل پیش کړي په حدیث د ابي حمید الساعدي سره جواب یې دادی:

انا اباداؤد قد اخرجه من وجوه کثیرة. ابو داؤد وګورئ دا حدیث یې په ډیرو طروقو چلولی دی.

أحدها عن أحمد بن حنبل. او کوم سند د احمد بن حنبل چې دي.

ولیس فیه ذکر رفع الیدین عند الرکوع.

دا تعارض شو دلته اضطراب دي.

والطریق الذي فیه ذلك. او کوم سند کې چې د رکوع په وخت کې رفع الیدین راغلی دي.

فهو عن عبد الحمید بن جعفر. هغه په سند د عبد الحمید بن جعفر سره دي.

فهو ضعیف قالوا انه مطعون في حدیثه فکیف یحتجون به علی الخصم فان قلت هو من رجال المسلم قلت لا یلزم من ذلك ان لا یکون ضعیفاً عند غیره.

دا خو لازمه نه ده چې د مسلم د رجالو نه دي نو ضعیف به نه وي.

ولئن سلمنا ذلك فالحدیث معلول بجهة اخری وهو أن محمد بن عمر وابن عطاء لم یسمع هذا الحدیث من ابي حمید.

دلته سماع نشته سند کې انقطاع راغله .

ولا ممن ذكر معه في هذا الحديث مثل ابي قتادة وغيره .

دا ۱۰ صحابه وو کې يو نه هم سماع نه لري .

فانه توفي في خلافة الوليد بن يزيد بن عبد الملك وكانت خلافته في سنة خمس وعشرين ومائة ولهذا قال ابن حزم ولعل عبد الحميد ابن جعفر وهم فيه يعني في روايته عن محمد بن عمر وابن عطاء فان قال الخصم قال البيهقي في المعرفة حكم البخاري في تاريخه .

فيصله کړې امام بخاري په تاريخ خپل کې .

بانه سمع اباحميد . چې دده د اباحميد نه سماع شته دي .

قلنا . مونږ وايو .

القائل بانه لم يسمع من ابي حميد . قائل ددې قول چې محمد بن عمرو بن عطاء سماع د ابي حميد نه ، نه لري .

هو الشعبي . هغه امام شعبي دي .

وهو حجة في هذا الباب . د امام بخاري قول بيا مقابله د امام شعبي نه شي کولې امام شعبي وايي چې دا سماع نشته .

كان يحيى بن سعيد يضعفه . داد حديث له دغې حصې سره لګيږي کوم چې مخکې تير شو ، فهو عن عبد الحميد بن جعفر فهو ضعيف .

دا عبارت په عمدة القاري کې نشته دي داد اسماء الرجال نه ما اخذ کړې دي دا عبد الحميد بن جعفر چې دي پاس تير شو فهو ضعيف په کوم سند کې چې دا طريقه د رفع اليدين تاسو ښايي داد عبد الحميد بن جعفر سند دي نو يو عبد الحميد بن جعفر ضعيف دي او دويم دا چې محمد بن عمرو ابن عطاء چې دي دده سماع د ابي حميد سره نشته دي نو دوه جرحې راغلي يو خو په کې انقطاع راغله او دويم سند کې عبد الحميد بن جعفر دي د

عبد الحميد بن جعفر متعلق كان يحيى بن سعيد يضعفه ، يحيى بن سعيد قطان به ضعيف كوه ده لره .

قلت ليحيى قد روي عنه يحيى بن سعيد ؟ ما وويل يحيى لره يحيى ابن سعيد ترې آحاديث نقلوي .

قال قد روي عنه وكان يضعفه . روايت به يې ترې كولو او ضعيف به يې ورته ويلې .

وكان يروي عن قوم ما كانوا يساوون عنده بشيء .

وايي ما يحيى ابن معين ته وويل چې يحيى ابن سعيد ترې روايات كوي وايي يحيى بن معين راته ويلې چې هغه ترې روايات كوي خو ضعيف هم ورته وايي او يحيى ابن سعيد كې دا كار دي چې له داسې قوم نه روايات نقلوي چې دده په نزد هيڅ اهميت نه لري .

قال يحيى بن معين وكان يرى القدر . دې د قدريه وو نه وه رايه يې د قدريه وو وه .

وكان سفيان ابن عيينة يضعفه . هغه به هم ضعيف كوه ده لره .

يو خبره بله له طرفه د نافيينو نه مثبتينو ته ده هغه دا چې تاسو كوم روايات مونږ ته پيش كړل څلور واړه دې كې عمل دائمي استمراري تر اخر وفات د نبي عليه السلام پورې څه دليل نشته نو دوي بيا په دې كې د بيهقي يو روايت پيش كوي چې هغه دال دي په استمرار تر وفاته چې مرقات په جلد ۲ صفحه ۳۱ كې نقل كړې دي .

واعلم ان البيهقي روي في سننه حديث ابن عمر هذا بزيادة في آخره بلفظ فما زالت تلك صلاته حتى لقي الله تعالى .

دا روايت حافظ په تلخيص صفحه ۸۱ كې ذكر كړې تلخيص الحبير او حافظ نه مراد ابن حجر عسقلاني دي .

والزيلعي في نصب الراية جلد ۱ صفحه ۴۰۹ كې هم ذكر كړې :

وسكتا عليه ولم يتكلما لكن في سنده عبد الرحمن بن قريش ، دي .

قال الذهبي في الميزان جلد ۲ صفحه ۱۱ : اتهمه السليماني بوضع الحديث . دې حديث ته خو بيا موضعي ويل كيږي .

وقال الخطيب في تاريخه جلد ۱۰ صفحه ۲۸۳ في حديثه غرائب وافراد ولم اسمع فيه الا خيرا .

او په دې کې عصمة بن محمد الانصاري دی .

قال ابو الحسن الدار قطني عصمة بن محمد بن فضالة الانصاري متروك ذكره الخطيب في تاريخه جلد ۱۲ صفحه ۲۸۶ وقال ابن عدي كل حديثه غير محفوظ ذكره الذهبي في ميزانه .

خلاصه دا چې هغه روايت : فما زالت تلك صلاته حتى لقي الله تعالى ، هغه صحيح نه دي ضعيف دي دوي يې هم له شرم نه پيش کولې نه شي .

آخره کې زه دري روايت ذكر كوم چې دوي قائل نه دي نو چې كوم خلک وايي چې مونږ حديثو پسې ځو نو په کار ده چې دا رفع اليدين هم شروع کړي .

امام بخاري په جزء رفع اليدين في الصلاة جلد ۱ صفحه ۸۵ په صحيح سند سره پيش کوي :

حدثنا موسى بن اسماعيل حدثنا حماد بن سلمة عن يحيى بن ابي اسحاق قال رأيت انس بن مالك رضي الله عنه يرفع يديه بين السجدتين .

دا ددوي رايه نه ده او حديث صحيح دي د سند په لحاظ .

سنن ابي داؤد جلد ۱ صفحه ۲۶۹ :

حدثنا قتيبة بن سعيد حدثنا ابن لهيعة عن ابي هبيرة عن ميمون المكي انه رأى عبد الله بن الزبير . عبد الله بن زبير يې وليدلو .

وصلى بهم يشير بكفيه . مونځ يې پسې وکړو چې اشاره يې په کفينو کوله .

حين يقوم وحين يركع وحين يسجد وحين ينهض للقيام فيقوم فيشير بيديه فانطلقت الى ابن عباس رضي الله عنه . وايي زه لاړم عبد الله ابن عباس رضي الله عنه ته .

فقلت اني رأيت ابن الزبير صلى صلاة لم ار أحدا يصليها . داسې مونځ يې وکړو چې ما څوک نه دي ليدلي چې داسې مونځ يې کړی وي .

فوصفت له هذه الاشارة. چې کوزیدو هم رفع الیدین وه چې پورته کیدو هم رفع الیدین وه داسې مونځ یې وکړو.

فقال. وایي ما ته یې وویل:

ان احببت ان تنظر الی صلاة رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فاقتد بصلاة عبدالله بن الزبیر. ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمائل که د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مانځه اقتداء کول غواړې نو د عبدالله ابن زبیر مونځ پسې اقتداء وکړه نو اوس دا شروع کړې بیا کنه احادیثو کې خو راغلل په هر خفض او رفع کې راغلل او په هر قیام کې راغلل ولې بیا په دې باندې عمل نه کوي.

سنن ابن ماجة جلد ۲ صفحه ۴۱:

حدثنا عثمان ابن ابي شیبة وهشام بن عمار قالا حدثنا اسماعیل بن عیاش عن صالح بن کیسان عن عبدالرحمن الاعرج عن ابي هریرة قال رأیت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یرفع یدیه في الصلاة حذو منکبیه حین یفتتح الصلاة وحین یرکع وحین یسجد.

دا حین یسجد باندې ولې عمل نه کوي.

هر چې احناف او موالک دي هغوي داسې نه وایي چې په دین کې ګنې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا عمل شوې نه دي شوې دي هر خفض او رفع کې هم شوې دي رکوع ته کوزیدو پورته کیدو کې هم شوې دي سجده کې هم شوې دي بین سجدتین هم شوې دي بعد الرکعتین هم شوې دي په هر قیام کې هم شوې دي خو وخت په وخت دا په کمیدو باندې وه کمیدو کمیدو حتی چې روایاتو د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راورسیدل او د هغه او د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایاتو کې مونږ ترجیح د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکوو ځکه چې هغه افقه د صحابه وو دي.

او که یو سړي وایي چې نه بس عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلې دي او زه خو د عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه، نه شم تیریدلې نو زه به تاسو ته د عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډیرې فتوي او افعال نقل کړم چې وهابیان د هغې سخت مخالف دي نو ځنګه دلته د رفع الیدین په باب کې د عبدالله ابن مسعود د حضرت علي او د عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه عمده عمده صحابه وو فتوو ته نه ګوري په امت کې مو تنازع او اختلافات جوړ کړې دي او د همغه عبدالله ابن عمر

رضي الله عنه فتوى مونږ درته په صحيح سندونو پیش کوو تاسو پسې نه ځي له سره يې مني نه بيا دا فتوى د عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما به چې زه يې ذکر کوم په دوه ځايونو کې تاسو ته کار کوي :

(۱) رفع اليدين کې ، (۲) د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ترک السنة في السفر چې دوي کلک راتينګ کړې دي چې د هغې نه يې دين جوړ کړي په مقابل کې د ځومره صحابه وو اقوال دي ټول يې پريښې دي دې دواړو ځايونو کې تاسو ته کار د کوي.

صحيح البخاري جلد ۲ صفحه ۵۴ :

**وكان ابن عمر وابن عباس رضي الله عنهما يقصران ويفطران في اربعة بُرُدٍ وهي ستة عشر فرسخاً.**

رايه د وهابيانو داده چې په ۴ ميله کې قصر راځي او داد ظواهرو رايه هم ده عبدالله ابن عمر او عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما څلور برد چې شپاړس (۱٦) فرسخه تري جوړيږي په دومره اندازه کې به دوي قصر کولو .

نو عمل د ابن عباس او د ابن عمر رضي الله عنهما د وهابيانو سره په اندازه د قصر کې رد کوي چې دوي وايي ۴ ميله دي او هغوي ١٦ فرسخه وايي .

دارنګې صحيح البخاري معرب بيروت چاپ جلد ۷ صفحه ۲۰٦ :

**وكان ابن عمر رضي الله عنه اذا حج او اعتمر قبض على لحيته فما فضل اخذه .**

عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما به له قبضې نه اخوا ږيره اخيسته او وهابيان دې ته مکروه وايي .

**واعف اللحى . باندې عمل کوي .**

مونږ هم وايو چې بهتري په پريښودو کې ده ليکن قبض جائز دي وهابيان قبض او د قبض نه اخوا ته قبض چې کوم دي فتاوو کې يې تصريحات کړې ناروا او مکروه يې ګڼلي ده او عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما به خپله دا عمل کولو .

دارنګې صحيح البخاري معرب بيروت چاپ جلد ۹ صفحه ۲۱:

**وكان ابن عمر يراهم شرار خلق الله وقال انهم انطلقوا الى ايات نزلت في الكفار فجعلوها على المؤمنين .**

خوارج د خدای په مخلوق کې بد خلک دي ځکه هغه اياتونه چې د کفارو په حق کې نازل دي هغه په مسلمانانو چسپانوي نو وهابيان اوس دا کار کوي دا تمام قرآن کريم د کفارو متعلق نازل شده اياتونه په مسلمانانو چسپانوي.

که د ابن عمر رضي الله عنه فتوی او قول نه دين جوړوي نو د هغه په نزد خو د خدای په مخلوق کې تاسو وهابيان بد ترين خلک ياستي.

دارنګې صحيح مسلم جلد ۴ صفحه ۱۲۷:

عن عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يأتي قباءً يعني كل سبت كان يأتيه راكباً او ماشياً.

قباء مسجد ته به د هر خالي په ورځ راتلو.

قال ابن دينار وكان ابن عمر يفعله. د هر خالي شنبې په ورځ به د قباء مسجد ته اوته چې حاجيان مديني ته ځي او په مزاراتو ګرځي نو اعلی د بدعتيانو ورته وايي.

په مزاراتو په مقدساتو او په مساجدو باندې ګرځيدل د دوي په کتاب کې دې ته د شرک الفاظ استعمال شوې دا وايي وسائل د شرک دي، او هلته يې هم سخت منع کوي له دې نه او عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما، وكان ابن عمر يفعله.

دارنګې سنن الترمذي بيروت چاپ جلد ۴ صفحه ۲۲۵:

عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنه كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا اعتم سدل عمامته بين كتفيه.

پټکي به يې چې په سر وه شمله به يې شاته د اُولو يعني اوږو مينځ کې وه.

قال نافع وكان ابن عمر يسدل عمامته بين كتفيه قال عبيد الله ورأيت القاسم وسالماً يفعلان ذلك.

نو وهابي ته وايه چې تا هم کله پټکي په سر کړې دي د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه قول نه دې دين جوړ کړې په امت کې دې نزاع جوړه کړې نو د ابن عمر رضي الله عنه دې قول باندې ولې عمل نه کوي پټکي خو هم کله په سر کړه ځکه ابن عمر رضي الله عنه مرفوع حديث پيش کړې.

دارنګې سنن ابن ماجه جلد ۲ صفحه ۵۶۶:

عن سالم بن عبد الله عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ اذا رأيتم الهلال فصوموا. میاشت د روژې چې وګوري نو روژه ونیسي.

واذا رأيتموه فأفطروا. او چې د اختر میاشت وګوري نو افطار وکړي.

فان غُم عليكم. كه چیرته وریځ په تاسو راغله.

فاقدروا له. شعبان ورته اندازه کړي هغه ۳۰ پوره کړي نو خپله به رمضان داخل شي.

وكان ابن عمر يصوم قبل الهلال بيوم.

عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما به د رمضان میاشت له لیدو نه مخکې هم یوه ورځ روژه نیوله او ته وهابي یوم الشک روژې ته حرام وایې.

په دې وهابیانو پوسټرې لیکلي دي څومره اعلانات په دې باندې کوي او عبد الله بن عمر رضي الله عنهما به دا عمل کوه چې یوه روژه به یې مخکې ترې نه نیوله احتیاطاً زمونږ مذهب باندې رد نه دی زمونږ مذهب هم وایي چې دا مکروه ده لیکن په نیت د رمضان نیول مکروه دي هدایه کې لیکلي که نیت د نفلو دې په کې وکړو بیا جائز دي.

دارنګې سنن الکبری للبیهقي جلد ۲ صفحه ۱۶۱:

اخبرنا اسامة بن زيد قال سألت القاسم بن محمد عن القراءة خلف الامام. ما د قرائت خلف الامام تپوس وکړو.

فقال. ما ته یې ووېل.

ان قرأة فقد قرأ قوم كان فيهم اسوة. که یې لولي څه صحابه پرې قائل دي.

وان تركت فقد ترك قوم كان فيهم اسوة. او که یې پرېږدي په هغې کې هم څه صحابه دي چې په هغې کې اسوة حسنه دي په ابتداء کې.

قال وكان ابن عمر لا يقرأ. عبد الله ابن عمر رضي الله عنه به قرائت خلف الامام نه کولو.

نو اوس دې وهابیان په دې کې هم د عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما اطاعت وکړي کنه هغه سفر کې چې سنت نه دي کړي څنګه کلک دې راټینګ کړې دي چې بس نور هر څه دین پرېږده

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دي کړي نو اوس دلته هم عبدالله ابن عمر قرائت خلف الامام نه کولو ولې دين ترې نه جوړوي.

ددې د پاره ما د پنجاب د احسان الهي ظهير يو رساله وليدله په هغې کې د رفع اليدين باره کې دا اعتراض کړې دي وايي تاسو ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې ځي او ابن مسعود به طبق کولو هغه به چې رکوع ته کوزيدو نو دواړه لاسونه به يې د زنګنونو مينځ کې نيول نو بې آدبه اعتراض پرې کړې دي چې معروف عمل د مانځه ورته ياد نه وه تاسو ده پسې تللې ياستئ عياذاً بالله

عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته به پته وه په دې خو ټول محدثين باب لګوي چې ابتداء د اسلام کې طبق راغلې وه رکوع کې زنګون نيول نه وه لاسونه به دې د زنګونانو مينځ کې دننه کړه دغه طبق وه خو دا چونکې سخته وه تکليف وه نو بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حکم آسانه کړو.

نو دلته څه علماء وايي چې هغه منسوخ شوې دي اوس به رکبتين نيسي او عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې منسوخ نه دي اولی اوس هم طبق دي خو چې يو سړي يې نه شي کولې دا ورته جائز دي دا خو صرف يو تاويل دي کنه مجتهد دي محدث دي فقيه دي هغه نه شي ويلې چې دا شئ منسوخ دي دا منسوخ نه دي دومره حق به هم نه لري نو دوي ترې نه دا جوړه کړه چې ګنې عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د زنګنونو نيول ياد نه وه يا ګنې دين نه وه ورته زده يا يې مونځ ياد نه وه عياذاً بالله

هغه داسې نه وايي چې رکبتين نيول ثابت نه دي يا روا نه دي وايي دا روا دي خو صرف د ضروروت پر بناء چې هغه عمل څوک نه شي کولې نو دا دې وکړي نو دا اعتراض ددوي په رسائلو کې شته په عبدالله ابن مسعود باندې چې هغه طبق کوي تاسو يې ولې نه کوي نو ځکه ما ورته دا فتوى د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذکر کړي چې تاسو ته مونږ د عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فتوى وښايو چې تاسو کومه فتوى کې هغه پسې تللې يې.

مصنف ابن ابي شيبة جلد ٢ صفحه ٣٠٦ :

حدثنا عبدالله بن نمير عن عبيدالله بن عمر عن نافع عن ابن عمر انه كان لا يقنت في الفجر ولا في الوتر.

هغه به په وترو کې هم دعا قنوت نه ويلي او په فجر کې هم نه ويلې.

وكان اذا سئل عن القنوت. چا به چې تپوس ترې وکړو.

قال ما نعلم القنوت الا طول القيام وقراءة القران.

وايي مونږ قنوت نه پيژنو قنوت خو طول قيام ته ويل کيږي اوس څه پسې کنه داد چا مذهب دي چې په وترو کې قنوت نشته دي فجر کې قنوت خو څه اختلافي دي په وترو کې قنوت خو اتفاقي دي کنه عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې هم قائل نه وه لاړ شه پسې اوس.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۲ صفحه ۳۰۹:

حدثنا وكيع قال حدثنا سفيان عن واقد مولى زيد بن خليدة عن سعيد بن جبير عن ابن عباس وابن عمر انهما كانا لا يقنتان في الفجر. د سحر قنوت به دوي نه ويل.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۳۳۶:

حدثنا ابن علية عن ايوب عن نافع وانس بن سيرين قالا قال ابن اعمر يكفيك قراءة الامام.

امام پسې قرائت مه کوه د امام قرائت تا ته کافي دي.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۲ صفحه ۳۰۹:

حدثنا هشيم قال اخبرنا ابن عون عن ابراهيم عن الاسود بن يزيد قال قال ابن عمر في قنوت الصبح ما شهدتُ ولا علمتُ.

نه په يو محضر کې زه وم چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا ويلي دي او نه پرې علم لرم چې دا چيرته ثابت وي.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۵ صفحه ۱۱:

حدثنا أسباط بن محمد عن اشعث عن نافع قال قال ابن عمر من طلق امرأته ثلاثاً. چا چې په يو ځل بې بي ته درې طلاقه ورکړل.

فقد عصى ربه. نافرماني د رب يې وکړه.

وبانت منه امرأته. ښځه ترې جدا شوه.

وهابي کاکا څنګه چل دي اوس مني دا فتوی دوي خو وايي يو رجعي طلاق دي رجوع ورته وکړه کنه نه پرې طلاقيږي ابن عمر رضي الله عنه څه وايي :

بانت منه امرأته . بي بي ترې جدا شوه .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۴۲ :

عن يزيد الفقير قال كان ابن عمر ينقص التكبير في الصلاة قال مسعر اذا انحط بعد الركوع للسجود لم يكبر فاذا اراد ان يسجد الثانية لم يكبر .

داد چا مذهب دي اوس ځي وريسې ابن عمر به په رکوع کې تکبيرونه کمول کله به داسې وشو اذا انحط بعد الركوع للسجود تکبير به يې نه کوه الله اكبر به يې بالکل نه ويل ، فاذا اراد ان يسجد الثانية لم يكبر .

دوي خلکو ته داسې ذهن ورکړې چې عبد الله ابن عمر رضي الله عنه کله کيدې شي چې د رفع اليدين دې يو وخت کې پاتې شوي يې او ده ته دې يا پته نه وي .

ټول صحابه په ځای پريږدي داسې نظر ورکړي چې ګني اعلم د صحابه وو دادی او افقه يې دادی لوي مفسر دادی او لوي زاهد دادی بې آدبي مونږ نه کوو د عبد الله ابن عمر رضي الله عنه شهرت په اتباع د سنت کې ده .

نه دې فقاهت د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ته رسيدې شي او نه دې په علم تفسير کې عبد الله ابن عباس رضي الله عنه ته رسيدې شي او نه دې په علم حلال او حرام کې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ته رسيدې شي او نه دې په علم ميراث کې زيد بن ثابت ته رسيدې شي او نه په قرائت کې ابي بن کعب ته رسيدې شي دا ځانته ځانته آئمه موجود وه معروف خلک موجود وه .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۵۹ :

حدثنا عاصم عن ابن جريج عن نافع قال كان ابن عمر يضم يديه الى جنبيه اذا سجد .

داد چا مذهب دي اوس څومره روايات راغلي په دې چې ضم د جنبينو به نه کوي بلکې جدا به يې ساتي ، او ابن عمر رضي الله عنه به دا عمل کولو راخپل يې کړه اوس کنه .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۲ صفحه ۱۳۲ :

حدثنا ابوالاحوص عن ابي اسحاق عن عطاء قال كان ابن عمر اذا صلى الجمعة صلى بعد ست ركعات ركعتين ثم اربعاً .

وهابي ته خو د دووو هم قائل نه يې .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۲ صفحه ۴۵۵ :

حدثنا وكيع قال حدثنا عمرو بن ذر عن مجاهد قال كان ابن عمر اذا أجمع على اقامة خمس عشرة سرح ظهره وصلى اربعاً .

عبدالله ابن عمر رضي الله عنه به چې کوم ځاى کې پنځلس (۱۵) ورځې نيت وکړو نو څلور رکعته به يې بيا پوره کول نو رايه يې څه شوه چې موده د اقامت ۱۵ ده کنه او وهابيان ۱۰ ته موده د اقامت وايي يعنې وهابيان وايي چې ۱۰ ورځو کې سړي مقيم جوړيږي او بعضې اهل حديث ۱۷ ورځې وايي د ابن عباس رضي الله عنه قول پسې ځي او ابن عمر رضي الله عنه د احنافو سره موافق ده چې ۱۵ ورځې موده د اقامت ده .

مصنف ابن ابي شيبة جلد ۴ صفحه ۳۱۴ :

حدثنا جرير عن ليث عن نافع قال كان ابن عمر يطعم على ختان الصبيان .

د ماشوم په سنت کې به عبدالله ابن عمر خيرات کولو ډوډي به يې ورکوله او ته دا اعلى د بدعاتو نه ګڼې د سنت ډوډي ته بدعت حرامه او مرداره وايي او عبدالله ابن عمر به دا ډوډي ورکوله دا صرف د دوي هغه وهم يې خلکو ته داسې اچولې دي چې ګوري د ابن عمر رضي الله عنه حديث دوي نه مني نو د ابن عمر رضي الله عنه حديث کې اضطراب دي هم د سند په لحاظ هم د متن په لحاظ داسې طروق د حديثو دي چې هغه دوي په خپله هم نه عملي کوي .

## المبحث الثاني في استدلالات النافيين :

مونږ په رفع اليدين کې نافيين يو امام مالک رحمه الله مونږ سره دي .

سنن الترمذي جلد ۲ صفحه ۴۰ :

حدثنا هناد حدثنا وكيع عن سفيان عن عاصم بن كليب عن عبدالرحمن بن الاسود عن علقمة قال قال عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ألا اصلي بكم صلاة رسول الله صلى الله عليه وسلم ؟

مونځ وکړم تاسو ته مونځ د نبي عليه السلام.

فصلی . مونځ یې وکړو .

فلم يرفع يديه الا في اول مرة . رفع اليدين يې ونه کړل مګر په اول کرت کې .

قال : وفي الباب عن البراء بن عازب . امام ترمذي وايي په دې باب کې د براء بن عازب نه هم حديث شته .

د امام ترمذي رحمه الله يو طرز دي د هغه دا طرز دي چې کله مرفوع احاديث په دې باب کې وي نو لنډ يې خلاص کړي وفي الباب عن البراء بن عازب ، په دې باب کې مرفوع حديث د براء ابن عازب نه هم حديث شته ، لکه دد ې نه مخکې د رفع اليدين حديث ذکر کړې دي د ابن عمر رضي الله عنه .

بيا وايي :

وفي الباب عن ابي حميد الساعدي ووائل بن حجر ومالك ابن حويرث .

په دې باب کې له هغوي نه روايات شته نو دا في الباب کې مرفوع احاديث يادوي موقوف نه يادوي .

نو امام ترمذي وايي :

وفي الباب عن البراء بن عازب قال ابو عيسى حديث ابن مسعود حديث حسن .

په دغه ځاى باندې الباني چې کوم تحقيق کوي هغه وايي دا حديث صحيح دي .

وبه يقول غير واحد من اهل العلم من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم . په ترک رفع اليدين باندې يو څه صحابه قائل نه دي غير واحد څه ډير صحابه پرې قائل دي والتابعين وهو قول سفيان الثوري واهل الكوفة قال الشيخ الالباني صحيح .

سنن النسائي جلد ۲ صفحه ۱۹۵ تعليق کې الباني وايي :

قال الشيخ الالباني صحيح .

دارنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۱ صفحه ۳۸۸ هغلته تعليق د شعيب الارنوط وايي :

رجاله ثقات رجال الشيخين غير عاصم بن كليب نه فمن رجال مسلم .

سنن الكبرى للنسائي جلد ۱ صفحه ۳۳۲ کې باب لګوي : باب الرخصة في ترك ذلك.

مسند ابي یعلی جلد ۹ صفحه ۲۰۳، الاحکام الشرعیة للاشبیلي جلد ۲ صفحه ۱۹۱، مستخرج الطوسي جلد ۲ صفحه ۱۰۳، مسند ابي یعلی جلد ۵ صفحه ۱۳۸، مسند احمد موافقا لثلاث طبعات جلد ۱ صفحه ۳۸۸، مسند ابن ابي شیبة جلد ۱ صفحه ۱۶۶، الاوسط لابن المنذر جلد ۴ صفحه ۳۱۴.

دا حدیث چې زه تاسو ته مونځ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وکړم.

**فصلی فلم یرفع یدیه الا في اول مرة.**

د وهابیانو سرکرده الباني او شعیب الارنوط وغیره هم د صحت قول پرې کړې چې حدیث صحیح دي.

دا مونځ عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د وفات نه بعد په عراق کې کړې دي هلته خلکو ته وايي زه تاسو ته مونځ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کوم.

په نیل الفرقدین کې شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ ددې وضاحت کوي چې داد شام بادرباندې د ۱۰۰۰۰ صحابه وو تابعینو یو کنډک پروت وه د مجاهدینو او په هغې کې امام عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وه د ألا اصلي بکم صلاة رسول الله.

اعلان یې په هغه ځای کې کړې دي نو دا دومره صحابه جمع غفیره موجود وه او یو هم پرې اعتراض ونه کړو چې دا خو صلاة د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وه تا خو په کې رفع الیدین ونه کړل اول تکبیر کې رفع الدین وکړل او نورې یې ونه کړل.

په حدیث د سند په لحاظ څوک جرحه نه شي پیش کولې یوه خبره شته بعضې متعصبین وهابیان یې کوي محققین یې نه کوي هغه دا چې عبدالله بن مبارک یوه خبره کړې ده ترمذي هم ترې نقل کړې ده چې:

ان عبدالله بن مبارك انما انكر ما روا حديث ابن مسعود من فعل النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

امام ترمذي وايي چې:

قال عبدالله بن مبارك قد ثبت حديث من يرفع وذكر حديث الزهري عن سالم عن ابيه ولم يثبت حديث ابن مسعود أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم يرفع الا في اول مرة.

عبدالله بن مبارک وایي ترمذي ترې نه نقل کوي چې کوم کسان د رفعې قائل دي دي چې حدیث د زهري عن سالم عن ابیه پیش کوي هغه ثابت دي .

خو حدیث د عبدالله ابن مسعود چې أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم یرفع الا في اول مرة ثابت نه دي نو دا بعضې متعصبین دلته جرحه کوي او زمونږ دا عام فهم طالبان د وکه کوي .

د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوه حدیث مروي دي یو حدیث دادی :

ألا أُصلي بكم صلاة رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . بیا یې مونځ وکړو .

فلم یرفع یدیه الا في اول مرة .

دویم حدیث دادی چې عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته حکایت کوي چې :

ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم یرفع یدیه . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لاس نه دي اوچت کړي مګر په اول تکبیر کې .

ګورئ دا حدیث فرق لري عبارت یې وګورئ : ألا اصلي دا دده خپل عمل ده خو که د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ یې نه وای یاد کړي نو دا موقوف کېلې کیده بیا ألا أصلي صلاة رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوي وویل وکړه ، فصلی فلم یرفع یدیه الا في أول مرة.

عبدالله ابن مبارک دا حدیث نه دي یاد کړي هغه د ابن مسعود هغه حدیث یادوي چې :

أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم یرفع الا في اول مرة ، دا حدیث یادوي .

آثار السنن د علامه نیموي صفحه ۱۳۳ دغې جواب ته اشاره کوي وایي :

قلت رُوي عن ابن مسعود في الباب حديثان .

یو حدیث هغه دي چې من فعله لکه چې مخکې مونږ پیش کړو کما اخرجه ابوداؤد والنسائي والترمذي و آخرون .

او دویم حدیث مرفوعاً الى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أن لم یرفع الا في اول مرة او نحو ذلك کما اخرجه الطحاوي وغيره ليس هذا الا من جهة بعض الرواة نقله بالمعنى من حديث الاول لقول ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فالظاهر ان عبدالله ابن مبارك انما انكر ما روي حديث ابن مسعود من

فعل النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا ما جاء من فعل ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويقول : الا اصلي بكم صلاة رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

وكيف ما كان أجاب عنه شيخ علامه دقيق العيد المالكي الشافعي في كتاب الأمر بأن عدم ثبوت الخبر عند المبارك لا يمنع من النظر فيه .

وايي چې ابن عيد مالكي هغه دا ذكر كوي مقدمه د لامع الدراري جلد ۱ صفحه ۷۲ کې دا را اخیستې دي چې انكار د عبد الله ابن مبارک هیڅ نظر نه پیښوي په دې حدیث کې ځکه مدار زمونږ د دغې حدیث په عاصم بن كليب دي او باقي خو د رجالو د بخاري نه دي .

وقد وثقه ابن معين . هغه يې توثيق كړې دي بيا څه اعتراض په کې پاتې شو .

(۲) حديث مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶ کې را اخیستې :

حدثنا وكيع عن ابن أبي ليلى عن الحكم وعيسى عن عبد الرحمن بن أبي ليلى عن البراء بن عازب ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان اذا افتتح الصلاة رفع يديه ثم لا يرفعهما حتى يفرغ .

دا هغه وه چې امام ترمذي ويلي وه وفي الباب عن البراء بن عازب هغه دغه حديث شو دا دوه حديثه مرفوعه دي چې اول تكبير کې رفع اليدين كول بيا نه كول .

له دې نه بعد د صحابه كرامو رايې مونږ ځکه پيش كولې شو چې مونږ د لاحجة في الموقوفات قائل نه يو .

او بل امام بخاري هم دا خبره كوي چې كله احاديثو کې تعارض راشي نو عمل د صحابه وو ته دې ذهاب وشي او يا دې آخر فالاخر ومنلې شي كوم چې وروستي روايات دي .

الموطأ د امام محمد جلد ۱ صفحه ۱۷۹ ابراهيم د اسود نه نقل كوي :

رأيت عمر . ما عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وليدو .

يرفع يديه الا في اول تكبيرة . چې اوّل تكبير کې رفع اليدين كول .

ثم لا يعود . بيا يې نه كول .

ورأيت ابراهيم والشعبي يفعلان ذلك قال الطحاوي فهذا عمر لم يكن يرفع يديه الا في التكبيرة الاولى والحديث صحيح.

او که څوک وايي چې حسن بن عياش په کې راغلې دي وان كان هذا الحديث دار عليه، د حديث مدار دي ده فانه ثقة حجة وذكر ذلك يحيى بن معين وغيره.

الاوسط لابن المنذر جلد ۴ صفحه ۳۱۳:

حدثنا اسماعيل قال حدثنا ابوبكر قال حدثنا يحيى بن ادم عن حسن بن عياش عن عبدالملك بن أبجر عن الزبير بن عدي عن ابراهيم عن الاسود قال صليت مع عمر.

ما د عمرِ فاروق رضي الله عنه سره مونځ وکړو.

فلم يرفع يديه في شيء من صلاته الا حين يفتتح الصلاة. وقال عبدالملك ورأيت الشعبي وابراهيم وابا اسحاق لا يرفعون ايديهم الا حين يفتتحون الصلاة.

۴- مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶:

حدثنا وكيع عن أبي بكر بن عبدالله بن قطاف النهشلي عن عاصم بن كليب عن أبيه أن علياً كان يرفع يديه اذا افتتح الصلاة ثم لا يعود.

حضرت علي رضي الله عنه به اول تکبير کې رفع د يدينو کوله بيا به يې نه کوله.

۵- الموطأ د امام محمد جلد ۱ صفحه ۱۸۳:

قال محمد اخبرنا محمد بن ابان بن صالح عن عبدالعزيز بن حكيم قال رأيت ابن عمر يرفع يديه حذاء اذنيه في اول تكبيرة افتتاح الصلاة.

عبدالله ابن عمر رضي الله عنه مې وليده چې لاسونه يې اوچت کړه په اول تکبير کې.

ولم يرفعهما فيما سوى ذلك. دې نه بغير بيا يې نه دي اوچت کړي.

ابن عمر رضي الله عنه چې دوي د پاره اقوى استدلال د هغه قول پيش کوه هغه هم خلاف دا ثابت شو.

۶- مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶:

حدثنا وكيع عن مسعر عن ابي معشر عن ابراهيم عن عبدالله انه كان يرفع يديه في اول ما يستفتح ثم لا يرفعهما.

عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه به په اول تکبیر کې لاس اوچتوه بیا به یې نه اوچتوه.

دا دې زمونږ راوي عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه دي خلاف روایت یې څوک ښودلی هم نه شي او ددوي راوي عبدالله بن عمر رضي الله عنه دي مونږ په قوي سند د امام مجاهد سره.

او دارنګې د عبدالعزیز بن حکیم سره دوه سندونو باندې دده نه ترک رفع الیدین ثابت کړه ددوي د راوي نه او زمونږ راوي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دي څوک یې ترې نه شي ثابتولې چې هغه دې رفع الیدین کړې وي.

زمونږ راوي براء بن عازب دي هغه نه یې هم څوک نه شي ثابتولې چې هغه دې رفع الیدین کړې وي.

دا حدیث معجم الکبیر د طبراني جلد ۸ صفحه ۱۹۴، او مصنف عبدالرزاق جلد ۲ صفحه ۷۱ کې را اخیستې.

۷- مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶:

حدثنا هشيم قال اخبرنا حصين ومغيرة عن ابراهيم انه كان يقول اذا كبرت في فاتحة الصلاة فارفع يديك ثم لا ترفعهما فيما بقي.

۸- مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶:

حدثنا ابن مبارك عن اشعث عن الشعبي.

امام شعبي ۵۰۰ صحابه وو ملاقات یې کړي دي.

انه كان يرفع يديه في أول التكبير ثم لا يرفعهما.

۹- مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶:

حدثنا وكيع وابو اسامة عن شعبة عن ابي اسحاق قال كان اصحاب عبدالله واصحاب علي رضي الله عنه.

د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه چې څومره شاګردان وه او د حضرت علي رضي الله عنه شاګردان.

لا يرفعون ايديهم الا في افتتاح الصلاة . لاسونه به يې نه اوچتول مگر په اول تكبير كې .

قال وكيع ثم لا يعودون . بيا به يې عود نه كوه .

۱۰ – مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶:

حدثنا ابن فضيل عن عطاء عن سعيد بن جبير عن ابن عباس قال لاترفع الأيدي إلا في سبعة مواطن .

او چتېږي لاسونه په اوه (۷) ځايونو كې .

اذا قام الى الصلاة ، واذا رأ البيت ، وعلى الصفا والمروة ، وفي عرفات ، وفي جمع ، وعند الجمار .

يو اعتراض دې باندې كيږي چې دعاء قنوت كې رفع د ايديو څنگه دده هغه هم دې كې داخله نه شوه د هغې جواب را روان حديث نه مونږ كوو .

مصنف ابن ابي شيبة جلد ۴ صفحه ۹۶:

حدثنا ابو خالد عن أشعث عن الحكم قال كان أصحاب عبدالله يقولون ترفع الايدي في ثمانية مواطن : (۱) عند البيت ، (۲–۳) وعلى الصفا والمروة ، (۴) وبعرفة ، (۵) وبالمزدلفة (٦) وعند الجمرتين ، (۷) تكبير تحريمه ، (۸) دعاء قنوت .

دا وروستني دوه حديث كې نه دي ذكر كړي ځكه د حج په باب كې مسئله كوي نو هغه يې نه دي ياد كړي د حج يې دلته راغونډ كړل دعاء قنوت كې رفع د ايديو ثابته ده صرف دومره ده ابن ابي شيبة په دې باب لگولې څه ډير احاديث يې پرې نقل كړې دي صرف دا ده چې دغه رفع د ايديو په څه شكل ده نو څه آئمه وايي چې رفع د ايديو بهذا الهيئة ده لكه حرمينو كې چې كوم امامان ولاړ وي لاسونه يې مخې ته د دعاء په شكل نيولې وي وايي داسې به لاسونه اوچتوي او امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ رفع د ايديو په دغه هيئت سره وايي لكه مونږ يې چې اوچتوو نور رفع د صحابه وو نه ثابته ده چې رفع د ايديو په قنوت كې كړې ده د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوي نه ثابته ده چې دوي به په قنوت كې رفع كول صرف په هيئت كې اختلاف دي چې په كوم هيئت شوې ده .

۱۱ – مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳۶:

حدثنا ابوبكر عن الحجاج عن طلحة عن خيثمة وإبراهيم قال كانا لا يرفعان أيديهما الا في بدء الصلاة.

۱۲- مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۲۳٦:

حدثنا يحيى بن سعيد عن اسماعيل قال كان قيس يرفع يديه اول ما يدخل في الصلاة ثم لا يرفعهما.

او د سفيان الثوري رَحِمَهُ اللهُ قول په ترمذي کې چې ذکر شو چې دا رايه د سفيان ده او د اهل کوفه وو ده نو هغه هم له مونږ سره په دې کې معي دي چې د رفع اليدينو هغه قائل نه دي.

نو خلاصه دا شوه چې مذهبونو کې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په قول معروف او امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ ابراهيم النخعي او چند تابعين شاګردان د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوي د رفع اليدين قائل نه وه دي نه بغير د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا نه متضاد روايات راغلل په مرفوع روايت کې هم اضطرابات وه خپله عمل کې هم اضطراب دي.

حضرت طاووس ويل ما ليدلي چې رفع اليدين يې کړې، امام مجاهد وايي چې ما وليده رفع اليدين يې نه کول نو په دې لحاظ باندې دغه فقهاء دا متضاد روايات دوي داسې کوي کله د وضع اليدين مسئله على الصدر فوق السرة او تحت السرة په ټولو کې احاديث راغلي امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ټول په ځای پريښي دي هغه وايي ارسال وکړي نو دا کله دوي لاره پيدا نه کړي چې اوس مونږ دې کې څه چل وکړو کوم روايت واخلو نو ترک يې کړي نو د ابن عمر روايت د سند په لحاظ ضعيف نه دي.

د متن په لحاظ اضطراب لري چې ډير زيات طروق په کې دي او څه داسې ځايونو کې رفع اليدين شوې چې اسلافو کې امت کې او وهابيان خپله هم پرې قائل نه دي د دغې مجبوري د لاسه هغه متروک د عمل نه وګرځيده او د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په قول کې اضطراب نشته نه سندي نه متني نه يې عمل د خپل روايت خلاف ثابت دي نو هغې ته ترجيح ورکول شوه.

**مسئلة د رفع اليدين ختمه شوه**

